# دا کتاب


| | | |
|---|---|---|
| نوم | : | هوسۍ |
| شاعر | : | عبدالغفور لېوال |
| خپرونکی | : | د پښتني فرهنګ د ودې او پراختيا ټولنه (جرمني) |
| کمپوز\ډيزاين | : | نويد د کمپيوتري چارو مرکز- کابل |
| کمپوزر | : | قيس احمدي |
| چاپځی | : | دانش کتابتون، قصه خواني- پېښور |
| د خپرېدو نېټه | : | ورى-۱۳۷۸/ اپرېل ۱۹۹۹ |
| شمېر | : | ۵۰۰ ټوکه |

د پښتني فرهنګ د ودې او پراختيا ټولنه (جرمني) د خپرونو لړۍ (۵)

# د سر خبرې

د پښتنـــي فرهنـګ د ودې او پراختيـا ټولنــه مــوږ د دې لپــاره جوړه کړې ده، چې پـه پښتـو کـې ليکـل شـوي علمـي او تحقيقـي آثـار چاپ کړي، لــه نـورو ژبـو پښتـو تـه د ژباړل شـويو آثـارو لپاره د چـاپ زمينـه برابـره کـړو او لـه دې لارو هغـه تشـې ډکـې کـړو، چـې د پښتـــو ژبې د علمي کېدو په بېلا بېلـو برخـو کـې ليـدل کـېږي.

څنګه چې ادبـي آثـار شـعري او داسـتاني مجموعـې هرکـال ډېرې زياتې چـاپېږي او د چـاپ لپاره يې څه شرايط هـم نشته، نـو ځکـه مـوږ دې بلـې خواتـه توجـه کولـه او هـڅه مـو دا وه چـې زمـــوږ ژبـه علمـي شي، علمـي آثـار او د علمـي آثـارو ترجمـې پکـې زيـاتې شي.

په لنډو ورځو کې مـوږ تـه لـه پېښوره احـوال راغـی، چـې محترم استاد پوهـاند عبدالشکور رشـاد د ښاغلـي لـېوال پـر دې منظومـه (هوسۍ) يـوه سريزه کښلـې او زمـوږ لـه يـو دوسـت څخـه يـې غوښتـي وو، چـې د دې منظومـې د چـاپ بندوبسـت وکـړي.

زمـوږ دوسـت هـم د ښاغلـي لـېوال د منظومـې د چـاپ ضـرورت تـاييد کـړی او هـنري ارزښتونـه يـې سـتايلي وو، نـو ځکـه مـوږ هـم د استاد او زمـوږ د دوسـت غوښتنـو تـه پـه پاملرنـه د دې منظومـې د چـاپ سره موافقـه وکـړه. هيلـه لـرو چـې د دې منظومـې د چـاپ لـه لارې مـو د خپـل فرهنـګ د ودې لپـاره يـوه هـڅه کـړې وي. د پښتنـي فرهنـګ د ودې ټولنـه بـه ځان خوشـبخت وګڼي چـې کـه دا اثـر لوستونکي د څه شـېبو لپـاره مصروف کـړای شـي.

په درناوي.
د پښتني فرهنګ د ودې او پراختيا ټولنه

# د هوسۍ لړليک

| ګڼه | سرليک | مخ |
|---|---|---|

## دریمه برخه



## څلورمه برخه

# دهوسۍ د ډرامې په باب

رمزنګاري (SYMBOLISM) دليکوالۍ يو اسلوب دی ، دلويديز والو په وينا دغه اسلوب د نولسمې عيسوي سدۍ په پای کې لومړی ځل په فرانسه کې منځ ته راغلی دی ، خوزه وايم رمزنګاري دمحاکات ترسرليك لاندې په ختيز کې تقريباً تر دوو زرو کالو پخوا باب و ، په سنسکريت ژبه کې دهندوستاني فيلسوف «بيدپا» تأليف «کرينکا دمنکا» چې موږ يې اوس «کليله دمنه» بولو ددې ادعا شاهد دی ، دغه کتاب دساسانيانو د نامتو پاچا نوشيروان (۵۳۱-۵۷۹ع) په وختو کې په ساساني پهلوي ژباړل شوی دی . (۱)

زموږ دځوان رمزنګار (SYMBOLIST) شاعر (عبدالغفور ليوال) دهوسۍ ډرامه په پښتو ادب کې دخپل اسلوب له مخې درمزنګارۍ يوه ښه نمونه ده ، په دغه ډرامه کې **هوسۍ** دخپلواکۍ رمزدی ، او **دلوړو غرونو کلي** دګران افغانستان سمبول يوسل و څلور شپيته کاله (۱۲۵۵-۱٤۱۹هـ ق) کيږي دلوړو وغرونو دکلي دنازولي اوښايستې هوسۍ دخپلولو له پاره لاټ ديو ( لويديز استعمار) او بيا اورديو ( ختيز استعمار) ناپاکې ليځې راغښتې دي (۲) ، ددوی دخونريزو او مهاجمو لښکرو د وحشيانه بريد له کبله چې نازولي او ښايستې هوسۍ ته کوم مصيبتونه او شوا خونونه ورپيښ دي **دهوسۍ ډرامه** دهغو دژړدناکو او زړه ريبلونکو حادثو يو مرموز حماسي رويداد دی زړه لاټ بوديه

(دانګلستان ملکه) چې کوه نوریې په تاج کې ځلیږي ټپي لات دیو ته سلاور کوي « دهوسيه کلي ته توره په لاس مه ورځه ، لمن له زرو ډکه ورسه ، داد هوسيه دلاس ته راوستلو رازدی . »

دلته موږ وینو چې زموږ ځوان رمزنګار په ځومره مهارت د وطن پلورونکو او پر دي پالو له مخه ځخه دچل او دروهي نقاب هیسته کړی دی.

ځوک چې دهوسيه ډرامه ولولي یایې واوري زه باور لرم دا به ومني چې په دې ډرامه کې دپیښو ترکیب او تسلسل (PLOT) ځومره ابتکار لري ، ما فوق الطبیعت کردارو ته پکښې نسته ، تشبیهات او استعارې یې په زړه پورې دي تخیل یې عالي دی ، دبیان ژبه یې اغیزناکه ، سلیسه او محاورې ته نژدې ده - مکالمې (dialogue) یې له حال او محل سره برابري دي ، ابتذال نه لري ځیني مکالمې یې ددښمنانو په مقابل کې خسمونه او نفرتونه پاروي ، ځیني مکالمې یې دوپارونو دبیا ژوندانه هڅې او د غرور غریزې له خوبه پاځوي .

دخوشالۍ خبره ده چې زموږ ځوان شاعر توانیدلی دی د ډرامې د لوستونکو یا اوریدونکو په زړونو او ذهنونو کې دوطن سر شاره مینه او دوینبتا به ښاغلي هڅې دافتخاراتو د راستنولو له تودې جذبې سره وخوځوي.

***

دهوسيه ډرامه دشکل له مخې آزاد شعر دی چې په عربي یې «شعرالحر» په انګریزي یې Free verse - په فرانسوي ژبه یې Vers Libre - او په روسي ژبه کې Svabodnoystix بولي ،

آزاد شعر له کلاسیکي شعر (نظم ) سره دوه توپیره لري :

۱- په آزاد شعر کې دقافیې او ردیف ساتل لازم نه دي .

۲- د آزاد شعر مصرعي (نیم بیتي) په اوږدوالي اولنډوالي کې متناوبه برابري نه لري . یعنې په مصرعو کې یې دکمیت له مخې متناوب تکرار نسته (۳) .

د آزاد شعر ځینې پلویان په آزادۍ کې افراط کوي او د وزن مراعات هم دقافیې په څېر پرېږدي خو په ایران کې د آزاد شعر بنسټ ایښوونکي نیمایو شیج ویلي دي :

« زه بې وزنه شعر نه خوښوم د شعر له پاره وزن هغومره لازم دی لکه د تن له پاره جامه . » (٤)

زه وایم : دآزاد شعر په هره مصرع کې دیوه عروضي رکن (Foot) مراعات (که سالم وي که مزاحف) لازم دی خو دا لازمه نه ده چې دشعر په ټولو مصرعو کې دې هغه رکن دشیمر له مخې په متناوب ډول مساوي راغلی وي ، التبه په آزاد شعر کې د مصرعو نامتناوبه برابري باب ده ددغه نظر له مخې ما د هوسۍ د ډرامې مصرعي کچ کړلې ، په ټولو مصرعو کې (که لنډې وي که اوږدې) ما یو عروضي رکن وموند چې سالم یې څلور څپې ( هجاوې ) لري - درې لومړۍ څپې یې خج (فشار) نه لري او پر څلورمه څپه یې خج دي ددغه سالم عروضي رکن بڼه داسې ده :

← | ∪ ∪ ∪ - |

دغې عروضي بڼې ته په میتریک سیستم کې څلورم Paeon وایي خو زه یې «فاعلاتن» نومم خج یې پر «تن» دی .

ټوسي د ډرامې دمصرعو په پايونوکې ددغه رکن محذوف مزاحفه فرعه راغلې ده چې عروضي بڼه يې داسې ده :

← |ں ں −|

او زه يې «فعلن» نومم .

دادې ددغې ډرامې د دوو نابرابرو مـــصـــرعـــو عـــروضي سکڼښت (تقطيع) وړاندې کوم :

| | فاعلاتن | فاعلاتن | فاعلاتن | فعلن |
|---|---|---|---|---|
| ترټولـو اوږد | ں ں ں − | ں ں ں − | ں ں ں − | ں ں − |
| ۷ رکنه مصرع | زموږ ټوسيه | به ورته خانـ | ـدي سره بوډيو | |
| | به دتاريخ | ډيران کې ښـ | ـخه شي او خـا | رې به شي |

| | فاعلاتن | فعلن |
|---|---|---|
| ترټولوکـــوچنی | ں ں ں − | ں ں − |
| ۲ رکنه مصرع | وکنـــګلو | نو هيواد |

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۳ رکنه مصرع : | نوزه دلر | دراختو | مسيمې ته |
| | او ددې هسـ | ـکو دنګو غرو | کلې ته |

په پښتو ادب کې زياتره چار بيتي د فعلاتن ( يا-فاعلاتن) رکن له مـــتناوب تکراره څـــــخـــــه جـــوړې دي . ( وګ . دخلکو سندرې ۲۲۶-۲۲۹-۲۳۱-۲۳۳-۲۳۹- اولـسـي سنـدرې لـومــــــړی ټوک

٦١-٧٢-١١٠ دوهم ټوك ١٧-٩٤-او نور...)

دهوسې په ډرامه کې ډوزن له مخې ځيني داسې مصرعې هم سته :

فاعلاتن | فع لن || فاعلاتن | فع ||
ويشتل يې هـ | ـسـي و وژل يې هـ | ـسي

په دغه ډرامه کې د آزاد شعر له غوښتنې سره سم قافيوي همـ آهنگي لازمه نه ده ، خو کله کله گاونډي نيم بيتي په قافيوي همـ آهنگي کې برابر هم راغلي دي ، لکه :

له سپينو ستو | روله الما | سوله مرمـ | ـروجوړه
فضايي تـ | ـولهوه دميـ | ـني لهسند | روجوړه

او زما پرشونـ | ـدو يې د شونـ | ـدو باران و | او راوه
د تودې غيـ | ـږې دسکرو | ټو کان يې | واوراوه. (٥)

دهوسې په ډرامه کې کله پر ذوالقافيتين هم پيښيږو ، لکه :

دهغودنـ | ـيوژنيومرگ | وشاه ځلمـ | ـگو مچې شپيلۍ زغوي
چې چيرته ناست | وي په کړدې | کې او سپوږمۍ نڅوي

* * *

ماد هوسې ډرامه په ډير غور ولوستله او په ډير شوق مې وارويدله

زه ځوان شاعر (عبدالغفور لیوال) ته ددې ابتکاري تخلیق مبارکي وایم دده استعداد زما په زړه کې داهیله پیدا کړیده چې دی به د پښتو ادب له پاره دتخلیق په برخه کې ډیر بریالی وی.

- زه دده د بري دعا کوم .

**اکاډیمسین پوهاند رشاد**

---

(۱) وګ دکلیلةودمنه مقدمه دبیروت چاپ .

(۲) لات (Lord) په انګلستان کې د اشرافو لقب و.

(۳) په عربي کې دموشح ، زجل ، په پارسي کې دمستزاد، په پښتو کې د نابرابر نیم بیتي متناوب تکرارېږي.

(٤) وګ . پیام نوین مجله دشپږم کال دوهمه ګڼه ٦٣ مخ .

(٥) په دغو دواړو بیتونو کې نیم بیتي دکمیت له مخې برابر راغلي دي.

a f

(یو لنډ یادښت)

زه به تن غرض وګانده ته پرې نه ږدم
که د ګانده د ژوندون سرې ضمان شي
آزادي تر بادشاهيه لا تېرې کا
چې د بل تر حکم لاندې شي زندان شي
خوشحال خټك

# د هوسۍ تراژيدي

انسان يوازې د ژوند له پاره هڅه نه کوي بلکې غواړي د آزادۍ په مرسته "ځان" زبات کړي، ځان قربانوي چې آزادۍ ته ورسېږي د قربانۍ په مرسته آزادۍ ته رسېدل پخپله وګړي (فرد) له منځه وړي او د دغه نه حل کېدونکي پرادکس Paradox استمرار تراژيدي ده.

د شلمې پېړۍ "وجودي" فلسفه آزادي د انسان طرحه، پېژندنه او ماهيت ګڼي دا په آزادۍ محکوم انسان د ټاکنې په لايتناهي ډګر کې د خپلو کړنو مسئول دی او له مسئوليت څخه تېښته له آزادۍ څخه سترګې پټول دي.

II

له بلې خوا په شلمې پېړۍ کې اروا پوهنه رامنځ ته شوه چې د (خودي) او (ناويښتيا) د "يونګ" په ژبه جمعي يا قومي ناخوداګاه د سمبولونو او تصويرونو آره زيرمه په افسانو، فولکلور او لرغوني هنر کې ريښې لري. سمبول او تمثيل په اروپايي شعر کې د عاطفي هيجان په بڼه د (رمبو)، (ولرن) او (بودلر) په اشعارو کې ځان ځرګند کړ او دلته شعر د افسانې سمبوليکه ژبه ده اا او ښايي ووايو چې دغه سمبوليزم به له ختيزو (شرقي) سمبولونو څخه اغېزمن وي. که دلته سنايي د نوراني پير په مرسته په روحاني سفر پيل وکړ نو ډېره موده وروسته (دانته) هلته لومړی د "ويرژل" چې د عقل سمبول دی او بيا د (بيناتريسه) چې د مينې سمبول ده په مرسته

لومړی

خپل مانیز سفر پر مخ بوته. په یوه اټکل دا شرقي افسانې دي چې لومړی د مصر او بین النهرین له لارې لرغوني یونان او بیا ټول لویدیځ ته ورسیدې.

III

د یونګ د زړې نښې (کهن الګو) له مخې مولانا په مثنوي کې د وېښتیا (خودآګاه) او نیمه ویښتیا (نیمه آګاه) په منځ کې شعر وایي. خو د شمس په دیوان کې ته به وایې د ناویښتیا (ناخودآګاه) له پوړ څخه تېرېږي او ټولیز (جمعي) ناویښتیا (ناخودآګاه) له ژورو څخه یې شعري سمبولونه په ژبه جاري کېږي همدارنګه د ګویته د "فاوست" په لومړۍ برخه کې موږ پوهېږو چې ولې د مارګریت مینه په ناورین بدلېږي خو د دوهمې برخې د شننې له پاره موږ اړ یو چې پوه شو چې لرغوني سمبولونه څه ډول د "هلن" په وجود کې بیا د هنر او شعر ډګر ته راوځي. د دې سمبولونو ریښه ښایي د بشري تاریخ څخه ورهاخوا غځېدلې وي.

IV

د لېوال د "هوسۍ" منظومه یوه داسې نوې هڅه ده چې د خپل زړه خبرې د افسانوي سمبولونو په مرسته وکړي د ښکلا سمبول (د تورو سترګو مېرمن) د شپېلۍ په اسرار آمېزه غږ زړه بایللي (مغروره پېغله) چې د تورو سترګو له مېرمنې سره ورته والی لري د شاعرانه تخیل په ځواك او د شپېلۍ په کوډو درې ځله بیا بیا ځان راځرګندوي، لکه "هلن" چې څو پېړۍ وروسته د ګویته د شاعرانه تخیل په ځواك بیا څرګندېږي.

"هوسۍ" د خپلواکۍ نښه د قربانۍ په مرسته د ژوند امکان مومي هغه زخمي کېږي او پر هغې مین کلیوال خپلې سترګې، وینې او هیلې هغې ته وربښي او بیا دا پوښتنه رامنځ ته کېږي چې د "آزادۍ" مظهر (هوسۍ) په دومره قربانیو ارزي؟ زخمي هوسۍ غواړي د شپونکي او د هغه د لېونۍ مینې په مرسته غنم وکړي. خو د دغې منظومې زړه بوږنونکې غمیزه (تراژیدي) په دې کې ده چې "هوسۍ" د مینې، سپېڅلتیا او حقیقت په لرلو سره سره له ماتې او شکست سره مخامخ کېږي، چې د هوسۍ دغه د (ناممکن) په لوري هڅه د یوې شاعرانه سمبولیکې تراژیدۍ استمرار ده.

V

دهرمان هسه (د بیدیا لیوه) داسې سمبولیکه افسانوي بېلګه ده چې لیکوال یې د (عقل) او (هنر) پلویانو ته وایي چې له انتزاعي منطق څخه ځان وژغوري خندا او ژوند زده کړي. (هرمینه) د ناخودآګاه هغه څېره ده

چې غواړي د (هال) له دروغجن شخصیت څخه دی طبیعي پیر (حالت) ته راوګرځوي، هرمینه د افساني او ناخودآګاه نښنه ده چې د (پابلو) په خوله خبرې کوي او (ماریا) د دوی تر منځ نیمه ویښتیا (نیمه آګاه) دنده لري. دغه ټول سمبولونه د انسان په لرغوني (جمعي او قومي) روان کې ریښنه لري ته به وایې چې په دې ډول د هوسۍ (آزادۍ) مینه وال او د هغې له پاره هڅې هم زموږ په لرغوني ژوند کې ژورې ریښې لري.

VI

په پایله کې ښایي ووایو دا انسان دی چې د آزادۍ په هکله فکر کوي او د هغې په باب پوښتنه طرحه کوي. آزادي د انسان قلمرو ده خو دا چې د دې یا هغې ځان ښوونې د ټاکنې (انتخاب) په پایله نه پوهېږي د دې له پاره اړتیا ده چې د یاسپرس په قول له ځانه تېر شو (دل به دریعا باید زد) ځکه چې موږ د راتلونکي په هکله نه پوهېږو له همدې امله وېره او اضطراب لرو د "پوپر" په خبره د انسان راتلونکې نامعلومه ده او د پیشبیني (اټکل) وړ نه ده دې ته ورته رواني وېره د راتلونکې په باب د "هوسۍ" په منظومه کې هم ځان تکراروي وبه یې لولو.

... کله چې لاس یو د بل غاړه کې سپېدو څخه پوښتنه کوو
سبا به څه کېږي
یو کال وروسته به څه پېښېږي؟!

د ریښتینې او انتزاعي آزادۍ په هکله ټاکنه (انتخاب) به د لېوال په راتلونکي لیکنو کې وګورو ځکه د سارتر پرانند انسان آزاد دی خو آزاد شوی نه دی. موږ به وګورو چې هوسۍ به د راتلونکي په لور د خوځښت وس ولري که نه؟

پوهندوی اسد اسمایي
کابل پوهنتون
۱۳۷۸/۱/۲۲

دریم

۱۵

# لومړۍ برخه

## زموږ کلي زموږ مينه

دلوړو څوکو هسکو د نکوغرونو
دسردرو دشنو لمنو خواکې
هلته يو کلی و دميني کلی .
زه ددې کلي شپو نکی
لا ډير زلمی وم چې په مينه پوه شوم
هو !
زه مين شوم او يو چا را سره مينه پيل کړه
يوه دتورو تورو سترګو ميرمن
او دګودر دنازولو ميره
د کليوالو ښايستونو دجرګې ګلوله

* * *

اول زه نه وم خبر
چې دښایست او مینې دغه جرګه
هر مازیګر زماد شنې شپیلۍ نغمو ته دګودر په غاړه
په تلو سه او تنده تمه کوي
خویوه ورځ چې دځنګلونو ترخوا
پرښو دسیند نغمو ته غوږ ایښی و
او څروبي په خپلو سپینو ګوتو
لا ترنګوله دسپرلي سندره
او چیرې لرې کتهار دزرکو
دڅو تنزرو دنغمو ځواب ته غاړې ایښې
ماهم شپیلۍ په شونډو وکیښودله
موز سره ټولو کړې په ګډه پیل
دیو زیړې مازیګر
مستو شیبو کې دځنګله زمزمې
اولا دشنه ځنګله په سترګو کې مړخوب زنګاوه
چې زموږ دکلي دښکلا قافله
ها دګودر دنازولو جرګه
دشنو څیړ یو اوزیتونو منځ نه
زما په لوري راغله
پیغلې په مینه او شور
له ما نه تاوې او راتاوې شولې
لکه رنګینې څوګیډۍ دګلو

او دښکلا دقافلې سرکښې
چې وه دتورو تورو سترګو میرمن
داسې په ناز وویل :
ای درنګینو سردرو شپونکیه !
شپیلۍ دې وغږوه
موږه دکوزې چینې
دیوګودر همزولې
یو ستا دښکلو ترانو میلمنې
او ما په ډیره مینه
دشرشرې له ترنم سره مل
بیا پوکی ورته کړلو شنې شپیلۍ ته
او له دې ورځې وروسته
هره ورځ زه وم ، شنـه شپیلـــۍ وه
او جرګه دښکلو
هر مازیګر به مې دتګ په وخت کې
یوه لمن ګلونه وشیندل په ښکلو پیغلو
او هرې پیغلې به پرخپلو ګوتو
هغه وربل کې ټومبل

* * *

یوه ورځ داسې هم شوه
کله چې ما څوسارایي ګلونه
دخپلې مینې په وربل کې ټومبل

هغې په ډېر اضطراب
راته په تورو تورو سترګو کې کوم څه وویل
خدای (ج) خبر څه يې غوښتل ؟
همزولې ولاړې خو هغه پاتې شوه ...
او شيبه وروسته مې چې سر و د هغې پرزنګون
نوراته داسې يې په ناز وویل :
«نوره شپيلۍ مه وهه ! »
او ما په ډېره حيرانتيا ورځنې وپوښتل چې :
مګر جانانه ولې ؟!
شپيلۍ خو زما او ستا دعشق رېباره
ماخو ټول عمر کې همدغه رمه
همدغه غرونه او همدا ځنګلونه
اوبس همدا يوه شپيلۍ درلوده

خوبيا مې ښکلي جانان
راته په ويره ويره داسې وويل :
بيګاه مې مور راته کيسه کوله
چې دشپيلۍ غږول
ځوانيمرګي راولي
نو ټوله شپه مې له ډېر غمه سترګې پټې نه شوې
زه يوې ويرې په سر واخيستمه
ستا دځوانۍ او ستا دمينې ويرې

نه چې خدای (ج) مکړه دځوانیو دمرگ
توره واکمنه پرتاپیښه نه شي
آه ربه ! خوله مې کړې له خاورو ډکه
هغه سات مکړې خدایه !
هغه سات مکړې خدایه !
خوما پوښتنه وکړه :
دا دځوانیو دمرگ
توره واکمنه څوك ده ؟
ولې سندرو څخه کرکه لري ؟
او دښمني کوي شپیلیو سره ؟
- نو نازولې راته داسې وویل :
دایولوی راز دی یوه لویه کیسه
زموږ دکلي دماضي داستان دی
نوما دتورو تورو سترگوله میرمنې څخه هیله وکړه
چې راته وکړي کیسه .
زموږ دکلي دماضي داستان کې څه راغلي ؟
نو مې اشنا راته کیسه پیل کړه
په مینه مینه یې پوښتنه وکړه :
تاهغه شنې شنې سارایي کوترې
چې یې مښوکې گلابي رنگ لري
سترگې یې تورې تورې
دسپینو بڼو یوامیل یې دی په غاړه کې

ليدلي چيرې ؟
نوما ځواب ورکړلو :
هو هو ليدلې مې دي
دلته يې هر سهار سيلونه راځي
او ددې شنو درو اسمان کې اتڼونه کوي.
بيا نجلۍ داسې وويل :
مور مې هم داسې ويل :
چې زموږ په کلي کې ددوه مينو زوړ زيارت دی
ددې زيارت په سر و او شنو جنډ وکې
دښا پيريو پاچاهي جوړه ده
او دغه شنې کوترې
دښاپيريو د پاچالونې دي
دشهزاد گيو يوه ډيره ښکلې
او نازولې پيغله
دشنو کوترو دکتار ميره ده .
هغه «نازو» نوميږي
چې له سندر و اوشپيليو سره مينه لري
او ټوله ورځ خپلو همزولو سره گرځي دنغمو په هيله
چيرې چې واورې دشپيلۍ سندرې
هلته راټولې شي غومبر ووهي
په مينه تاوې شي را تاوې شي اتڼ وکړي
کله لا وژاړي له تورو تورو سترگو څخه اوښکې تويې کړي

يوازې ځانګې دڅېړېو يې دساندو مات غږونه اوري
او نازو ځکه له شپيليو سره مينه لري
چې له هر غږ نه يې ناري دخپلې موراوري
پر هغې ګرانه مورکۍ
چې يې په ژوند کې هيڅ ليدلې نه ده
يوازې غږ يې دشپيليو له نغمو سره مل
دهغې غوږ ته ورځي
او مادتورو تورو سترګو له ميرمنې څخه وپوښتل چې :
نو دهغې مورځوك ده ؟
او دخپل کوم جرم سزا به وينې ؟
چې غږ يې شته خو خپله نه ښکاري
او آن تردې چې خپلې لونې يې هم نه شي ليدى
نو پيغلې خپله کيسه بيا پيل کړه :
موږ راته داسې وويل :
چې ډير کلونه پخوا
کله چې زموږ کلي کې فصل دغنموشين و
او دلته نه ؤ لا زيارت ددغو دوه مينو
ځکه هغه وخت لا ژوندي وو
يو پربل مين وو
او هره ورځ به يې همدلته
چې يې اوس زيارت دى
ددې چينې پرغاړه

دخپلې مينې ديدنونه كول
او دچينې پرغاړه
دديدنونو پردې ښكلي محل
دښا پير يو پاچاهي جوړه وه
دې پاچاهي كې يوه ښكلې ملكه وه چې « هوسۍ » نوميده
دخپلواكۍ تاج يې وايښی پرسر
دهسكو څوكو شنو ځنګلو واكداره
لكه يوبت دغرور
چې دښايست ساری يې نه وچيرې
ښكلې هوسۍ به له همزولو سره ګرځيدله
آن له سهاره تربيګاه پورې
دشنو دروګنو ځنګلونو منځ كې
كله به ناسته دچينې پرغاړه
او پرې همزولو به وربل جوړاوه
كله به ولاړه د ګودر لوري ته
دمستو مستو كليوالو پيغلو
دشنو منګيو كتارونو دليدوله پاره
خويو ماښام چې دتيارو وزرونه
ورو ورو خوريدل په ځنګله
اوسندربولې مرغۍ تلې دخپلو ځالو په لور
مسته هوسۍ هم راروانه وه همزولو سره
بې پروا ګرځيده خندل يې ، ترانې يې ويلې

خپلې مانۍ ته ستنيد له ځنګله له لورې
چې يو ناڅا په پرې «لات ديو» راپيښ شو
يو هيبتناکه په رنګ توراو ويرونکي دديوانو پاچا
چې و،راغلی داووغرونو ، اووسيندونوله شا
هلته چې لمر پريوځي
دلمرخاته دکليو ښکارېي کاوه
ځان يې نغاړلی دماښام څادرکې
چې هيڅ چانه شوليدی
هوسۍ هم ونه ليده
او په دې راز پوه نه شوه
چې دديوانو پاچا
وريانديې زړه بايللی
خو دهوسۍ ښايست خپل کار کړی :
لات ديو له ځان سره داپريکړه وکړه :
ځم دافق لورې ته
هلته چې لمر پريوځي
دماښا مونوښارته
دښکرورو مغربي ديوانو
يولوی لښکر جوړوم
بيا له پاچا دښاپيريو سره جنګ ته راځم
کلې يې سوځم اوځنګلو نو ته يې اور اچوم
دهسکو څوکو دنګوغرو غرورېي

داور او وسپنو په قهر وژنم
او چې هوسۍ زما شوه
بیا به نو دلته پاچاهي جوړه کړم

## او د دیوانو پاچا جنګ ته راغی

نو یوه ورځ مازیګر
کله چې زموږ کلي کې فصل دغنموشین و
هغلته لرې دافق په څنډه
چیرې چې لمر پریوځي
یو د دیوانو لوی لښکر ښکاره شو
چې راروان وزموږ دکلي په لور
ترشایې کلي او ځنګلو نه سوي
تورې یې سرې په وینو
داوو سیندونو او اووغر ونو له شا
دمابنا مونو له تور ښار نه راتلل
او هلته لرې یې خیمې پلنې کړې
دلمر خاته لورې ته
پر هغې لویې دښتې
چې یې دسرو زرو مرغۍ درلودې
له هغه وروسته ددیوانو لښکر
له دغې دښتې څخه
درې ځلې برید وکړ زموږ پرکلي

خو زموږ دکلي دزلمو لښکرو
دښاپيريو له پاچا سره وه ملاتړلې
او د هوسۍ پر ننګه ولاړل دديوانو جنګ ته
کله چې ځمکه اور شوه
او په کې وځغاستل وحشي آسونه
کله چې تورو له يو بل څخه مچکې غلا کړې
او بيا په سرو وينو کې ولمبيدې
څه موده وروسته دلو ځرومنځ کې
زموږ شاه زلميو د ديوانو پوځ ته ماته ورکړه
خو چې په دنګوشملو بيرته ستنيدل کلي ته
نو د بريو له نارو سره يې
دوه جنازې ددوه مينو راوړې
دغه چې اوس يې هم زيارت شته
دچينې پرغاړه
او په اتڼ اتڼ يې
هغوی همدلته دهوسۍ په هيله
دښاپيريو د پاچا ښکلې مانۍ کې خښ کړل
او مانۍ داسې په زيارت واوښته

* * *

خو دسروزرو د مرغيو ډاګ کې
لاټ ديو يوازې او زخمي پاتې شو
لاس يې پرې شوی اوپښه يې نه وه

دخپل کسات داخیستلو یې غاښونه چیچل.
خو یوه ورځ یې په دې دښته کې ابلیس وموندہ
او چې یې لاس ورښکل کړل
ورته زنګون یې کیښود
چې ورته کوډې زده کړي ...

## اوبیا لات دیوراغی زموږ کلي ته

کلونه وروسته چې بیا زموږ کلي کې فصل دغنموشین و
په یوه توره شپه کې
دلمر خاته له لوري
څوک راروان ودلکړو په زور
نه یې یو لاس و نه پښه ورپورې
سترګې یې سرې سرې وې دوینو کاسې
ویښتان یې آن په زنګنو لګیدل
داهیبتناك او ویروونکی کوډګر
مخامخ ولاړہ دزیارت لوري ته
کلیوال ټول ویدہ وو
هیڅ څوك پرې نه شول خبر
یواځې یو ځلې دتالندې یوبرك شو دزیارت ترپاسه
خوله سهار سره سم
کلي کې داسې انګازې شوې چې هوسۍ ورکه ده
کلونه وشول او کلونه کیږي

چې هوسۍ ورکه ده او مور مې ویل :
هغه لات دیو وه چې راغلی و زموږ کلي ته
دغه کوډګر دخپلو کوډو په زور
په هاغه توره شپه کې
ښایسته هوسۍ خدای (ج) خبر چیرې بوتله
او دهغې له ورکیدو سره سم
دښاپیر یو پاچاهي کې لوی ماتم جوړ شو
کلیوال هم خپه وو
ښځو زیارت ته ځیر مه
دغړو (۱) نذر بارکړ
بیا یې د سرو او شنو جنډو ترپاسه
توري جنډې هم دماتم له پاره وتړلې
جومات کې ختم وشو
او ماشومانو لمرلویدو سره سم
په ویره ویره پرېښودلې لوبې
ټولو به منډه کړه او پټ به شول دمیندو غېږ کې
او له دې وروسته زموږ دکلي هغه مستې
بې پروا پیغلې
نورې زیارت ته نه تلې
ځکه ملکه ښاپیرۍ ورکه وه
ښکلې هوسۍ ورکه وه

(۱) غړې، یوه دولړ بلډو دی ده چې لمخوږ واوړ واو غوړ یو ځخه پخیږي او کلیوالي میرمنې یې په نذر او خیرات کې ویشي

# یو پردیس دلرولارو

مګر کلونه وروسته
یوه ورځ تکنده غرمه کې دبیدیا له لوري
یو لاروی ستړی ستومان ښکاره شو
خولې پرې ماتې رنګ یې تور اوښتی
په ول ول څڼو کې یې خاورې دمزلونوپرتې
یوازې اوږد کمیس یې ځان کې تبرګی یې په لاس
کچکول یې غاړه‌کې پروت
او په روښانه برندو سترګو کې یې
یوه بریښنا دکوم پټ راز ځلیده
نو چې زموږ کلي ته راورسیده
لږ څه موسکی شو بیا څه وبونګیده
او خپل ستومانه قدمونه یې اوچت کړل دزیارت په لوري
سم چې سبا شو نو دکلي خلك
دمینجور ملنګ په راز خبر شول :
هغه راغلی وله لرې نا آشنا وطنه
له اووسیندونو نه اوښتی په اووغروختلی
هغه لیدلي وو په خپلو سترګو
لوی لوی دیوان هم داروااوو کلي
دماښامونو محل
اودسبکلا ښارونه
ملنګ له هر څه نه خبرو په هر څه پوهیده

ښايي رازونه ددنيايې ټول دسترګو په بريښنا کې پټ وو
چاورنه حال دجاد وګرو پوښتهء
چاترې کيسې دهغو پيغلو غوښتې
چې دلويديځ دښارو
دمرمري ماڼيو
دلمر چينو کې لامبې
او په دى منځ کې يو چا حال ترې دهوسۍ وپوښته :
ملنګه !
تا چيرې ونه ليدله ؟
زموږ دکلي نازولې هوسۍ ؟
ددې زيارت په سرواو شنو جنډو کې
دښاپير يو دپاچا ملکه ؟
هغه زموږ دخپلواکۍ ښتنه ؟
نو دملنګ سترګو کې بيا شوه درازونو بريښنا
يوه شيبه غلى و
او بيا يې داسې وويل :
ما هغه وليدله
چې زنداني وه دلات ديو په فرمان
په يوه لرې نا اشنا وطن کې
دشنو جلګو تر ښنګه
ددنګو کړکو (۱) په يولوى ځنګل کې
او ددې لرې نيستان له سره

(۱) کړکي : ناي ها ، نلونه

يوازې باد تيريده ء
زانې يې نه درلودې
هيلۍ هم نه وې په کې
يوه زړه ديوبوډۍ
چې يې په تاج کې ددې کلي ( کوه نور) ځليده ء
وه ملکه دهاوحشي نيستان
او ماته داسې ديو بوډۍ وويل :
ملنګه واوره کيسه :
دلته دهسکو هسکو غرونو او دشنو ځنګلونو
دښاپيريو ملکه بندي ده
نوم يې هوسۍ ده او په کلي کې يې
نارينه زوکړې سره سم دتورې چل زده کوي
هغوی سروباندې پګړۍ تړي شملې يې هسکې
ديوان ويريږي دهغوئ جګړې ته نه شي ورتلای
لات ديو چې ځوی دی زما
دهغوی جنګ کې شو بې لاس او پښو
ځو يې چې خپل کسات ته
ابليس نه کوډې زده کړې
او دابليس ورته وروستی وصيت همداو چې دې کلي ته دتګ له پاره
توره تر ملامه تړه !
لمن کې زر يو سه !
لات ديو دکوډو په زور

هوسۍ دکړکو دځنګلو بندي کړه
اوما (ملنګ) سره زاړه شراب وو
چې مې پرې مسته کړه زړه دیوبوډۍ
نومې ترې راز ددې طلسم وپوښت
چې هغې داسې وویل :
که څوك له دغه نیستان څخه کوم کړکی یوسي
ورنه شپیلۍ جوړه کړي
او بیایې وغږوي
چې غږیې لاړشي آن دهسکو هسکو غروکلي ته
دښاپیریوهاښایسته شهزاد ګۍ
پیغله نازوېې واوري
هغه چې ډیره په هوسۍ ګرانه وه
نوبه نازو ددې شپیلۍ له ستوني
دخپلې ګرانې مورکۍ غږ واوري
کله هوسۍ چې نازو پوه کړي په راز
نو به پاچا د ښا پیریو کړي داکوډې ماتې
یا خوله کړکي څخه څوك چیرې قلم جوړکړي
بیا یې دهسکو هسکو غرو دکلي
دڅو زلمیو په سرو وینو کې غوټه کړي
او پرې لیك ولیکي
که دغه لیك نازوته ورسیږي.
بیا هم طلسم دتیارو ماتیږي.

* * *

نوزه ملنګ چې په دې راز خبر شوم
پټ په غلا ورغلم ځنګله نه مې يو کړکی مات کړ
هغه مې راوړد ختيځ تر کليو
خو يوه ورځ له ورځو
سم چې دلوړو غرونو کلي ته راورسيدم
شپه مې دلوړو څوکو خوا ته يوه شنه دره کې
دکوم شپانه په شپول کې تيره کړه له
سهار چې کلي ته راوخوځيدم
کړکی مې هيرشو هلته
او چې سبا رایاد شو
په بيړه ورغلم هماغه شپول ته
خو زما برخه دې په اور وسوځي
کړکی دورکو ورك شو
ډير پسې وګرځيدم
مګر پيدا مې نه کړ
خدای خبر چيرې و پير يا نو وړی ... ؟

## اوهغه کړکی ما شپونکي پيدا کړ

... او چې کيسه زما دښکلې مينې
- چې وه ميرمن دتورو تورو سترګو-
دلته راورسيده
نو را په ياد شوه ماته

هاغو کلو نه پخوا
دپسرلي يوه ورځ
کله چې زه مې دنيکونو په لاس
هغه جوړ شوي شپول ته بيا ورغلم
چې هلته دمه وکړم
مگر دشپول څنگ ته مې
په حيرانتيا وليدل
څو ناآشنا پلونه
او يو دکړکو ډنډر
يو داسې کړکۍ چې يوبند يې وله بل څخه په لويشتولرې
ما هم په خپلو لاسو
ورنه شپيلۍ جوړه کړه
چې اوس پرې هرمازيگر
دادی سندرې بولم
او چې زما دغه کيسه واوريده ښکلې پيغلې
نويې له ډيرې ويرې
له تورو سترگو څخه اوښکې راغلې
او په ژړا يې راته داسې وويل :
آه ! خدايه دا څه اورم ؟!
له تا نه هيله کوم
نوره شپيلۍ مه وهه !
ځکه چې مور مې ويل :

په هاغه ورځ چې هازړې ديوبوډی
ملنگ ته راز ددې طلسم ووېل
نو چېرته پټ هغه ابلیس واورېده،
او پړې خبرېې کړ ديوانو پاچا
لات ديو دکرکې اوياوېرې اوغوسې له زوره
دکړکو نيم ځنگل ته اوروته کړ
او داسې هوډيې وکړ :
له نن نه وروسته لمرخاته لورې ته
په تيره بيا دهسکو غروکلې کې
چې هر زلمې شپيلۍ ته شونډې وروړي
نو پرې حرام شه ژوندون !
او اې زما لورې !
اې واکمنې په ځوانۍ کې دمرگ !
ولاړه شه ! والوځه !
دهسکو هسکو غرو کلې ته
هلته چې لمر راخيژي
او هر زلمې چې غږ وله شپيلۍ
نو ځوا نيمرگ يې کړه ، ژوندون ترې واخله !»
دلته نو بيا زما دښکلې مينې تورې سترگې
خدای (ج) خبرولې شوې له اوښکو ډکې
نويې په ويره ويره
اوساه نيولې ژبه ووېل چې :

مګر ته نه يې خبر ؟
همدا پرون يې زموږه کوزکلي ته
ديوه زلمو تي جنازه راوړه
چې لاهماغسې يې لاس کې وه شپيلۍ نيولې
خلك ونه پوهيدل
چې دا دچاله لاسه ؟!
اوستا شپيلۍ خوده هماغه سحر ګره شپيلۍ
چې دتيارو پاچاترې ويره لري
ځکه نوهيله کوم :
نوره شپيلۍ مه وهه
نه چې خدای (ج) مه کړه دالحوانيو دمرګ
توره واکمنه پر تاپيښه نه شي ...
هغه سات مه کړي ربه !
هغه سات مه کړي ربه !

# دوهمه برخه

## دنازو دښايسته مانۍ ميلمه شوم

څوك چې ريښتينى ژوندون نه پيژني
هغه ويريږي دمرگي له غږه
آه ! د ژوندون غلا مې
څه ويروونكې يې ته :
او زه هم وويريدم
نومې له دې ورځې نه وروسته دشپيلۍ غږول هم پريښودل
چې مې دتورو تورو سترگو له ميرمنې سره
دمينې شور له ترانو نه تش كړ
نو راته څه پاتې شول ؟
يوه خولگۍ ، يوه موسكا او بيا په مينه كتل
بس هره ورځ زموږ دمينې دكورگي ميلمه وو

خو یوه ورځ له ورځو
چې باد په کریغو کریغو
او قهر جن آواز په زوره نخولې ونې
مامې رمه پنډه کړه
او بیا مې وګنډلې سترګې دشینکې کلې په لاروپورې
ګوندې پرې راشې زما ښکلې مینه
چې یو نا څاپه مې دسرله پاسه
دسارانیو شنو کوترو سیل راوڅرخیده
اودځنګله له زړهٔ نه


دیوهٔ آس دځغا ستې غږ راغی
باد لا په کریغو سرو
چې دشنو ونو ترشا
یو څوك په سپین آس را ښکاره شولړې
باد یې دشنه څادر لمنه رپوله شاته
مخ یې نقاب کې پټ و
په خپل کوډګر غږ یې ناري کړې داسې
آهای !
دهسکو هسکو غرو شپو نکیه واوره
دښاپیریو دپاچا ریباریم
زموږ شهزادګۍ چې دې ژوندۍ وي مدام
یم رالیږلی دلته
او داپیغام لرمه :

«ته دنازو میلمه یې !»
نو دغه آس په تامانۍ ته بوځي
زه به دې بېرته تر راتګه پورې
دلته رمه وساتم
او زه حېران شوم حیران
چې خدایه دا به څه وي ؟!
خوشبیبه وروسته مې هرڅه ومنل
لکه په ما چې ښاپیرېو کوډګرۍ کړې وه
نو پرسپین آس باندې مې یون پیل کړ
پر نا آشنا او ناڅرګندو لارو
دشنو ځنګلو نو ترمنځ
لکه دنیا چې ټوله ډکه وي له هسکو لویو شنو ونو نه
هسې بې سده وم روان خدای خبرکوم لورې ته
په خپله ورك و مه له خپله ځانه
لکه یو څاڅکی اوښکه
دشنه ځنګله له ستر ګو وڅڅېدم وبهیدم
اواضطراب مې پـــه هر رګ کې لکه اور ځغلیده
زما په مخ کې یوه شنه دره وه
لکه په پیغله چې شین شال وي هوار
یا په شنو پاڼو باندې اورې آبشار
او شیبه وروسته ګردله شوه

لړې راغلې

اوغبار پریوتو ،

یواځې لرې نه دمستې شرشرې سندرې
لکه بهیر دهستۍ غوږ ته راتهء
خو لږ چې وراندې ولاړم
گردله والوته اولمر راوخوت
او خدای (ج) خبر زه وم په کوم جنت کې ؟!
یو پسرلی ، یوه ښکلا او یوه مسته ورمه
چې شرشرې نه وریدل د اوبوسپین غمي په شنې جلگې کې
او دجلگې تر شامې ولیده د حورو ماڼۍ
زما په لار کې ښا پیرۍ ولاړې
زلفې یې زما تر هر قدم لاندې فرش
او دماڼۍ په دروازه کې مې نازو ولیده
ها دښکلا ملکه
خدای (ج) یې جوړ کړی هر اندام په قدرت
کټ مټ زما دښکلې مینې په شان
سترگې یې تورې تورې
ما ویل هماغه به وي
هره خندا ، هره ادا او هر یو نازیې هسې
غږیې هماغه او خوږې خوږې خبرې یې هم
اوزه حیران وم حیران
چیرې نازو اوچیرې زما دتورو سترگومینه ؟
مگر هغه کټ مټ هماغسې وه
زه لا حیران وم چې نازوله لاسه ونیولم

او په هماغه کوډگرغږېږي راته داسې وويل :
داستا قدم پرليمو
اې زما دمينې پاچا
ستا دشپیلۍ له ستوني
ماته زما دمورکۍ غږ راته
مگر مودې وشوې چې ستا دشپیلۍ ستونی وچ دی
اخر داولې وایه
ته خو دمینې او ښکلا ریباروې
ته دسند رو پاچا
او ته دتږیو ښاپیر یو دمراد چینه وې
وایه درځار شم وایه !
ولې شپیلۍ نه وهې ؟
اولکه تیروختونه
دشنه ځنگله له څنگه
ستا دکوډگرو نغمو غږ نه راځي
څوزه دشنو کوترو سیل کې بیا دروالو څمه
اوپته پته دگلونو منځ کې
تا ته نږدې درشمه ډیره نږدې
څو ستاد شنې شپیلۍ له ستوني څخه
دخپلې ورکې مورکۍ غږ واورمه
ته پرې خبریږې که نه ؟
ستا دشپیلۍ سندرو

دښاپیر یو پاچاهي ویښنه کړه
او موږ په هر څه پوه شو
ما خپله مور ومونده
او اوس زموږ شهزاده
چې «آدم خان» نومیږی
توره تر ملا تړلې
بیاله لات دیو سره جګړې ته وتی
څو چې دکړکوله ځنګله څخه زموږ دخپلواکۍ ملکه
ښایسته هوسۍ خلاصه کړي
اوزموږ دکلي غرور بیا وګټي
نو تانه ځار شم اې دهسکو هسکو غروشپونکیه
شپیلۍ دې وغږوه
چې ددیوانو طلسمونه مات شي
نو راشه زموږه دماڼۍ میلمه شه
زه به دخپلو تورو سترګو مینه تاته درکړم
تا به دغیږې تال کې وزنګوم
تابه دناز چینه کې ولمبوم
تاته به در کړم دسرو شونډو څوکې
او تا به موږ کړمه د زلفو په خوب
راشه زما میلمه شه
او ماته وغږوه خپله شپیلۍ

# اوزه هم داسې شوم میلمه دنازو

لکه له ماځخه چې ځان هیرشو
بس دټول ژوند همدا خوږې ورځې وې
دنازو لو دماڼۍ میلمستیا
دښایستونو یاران
او دشرابو پیالې
دګل بلونو اوښاد یوشیبې
جامې ورښمینې او په زروکې ډوب
را سره مل به وې ښایسته ښاپیرۍ
دنازو غیږه وه دمینې جنت
هرې خندایې دزړه زنګ مینځلو
هرې موسکایې دعشق نور اوراوه
شپه به یې بوتلم
راته تخت به یې کړه خپله سینه
زه لویدم لویدم
ترڅو به خوب راغی دزلفو تال کې
نو مادښکلو ښاپیریو په دې شنه جنت کې
دژوند نغمې بللې
او هره ورځ به مې شپیلۍ وهله
خویادیده به مې تل خپله مینه
هغه زما دژوندون ټوله موخه
هغه دتورو تورو سترګو میرمن

هغه ښایسته او هغه تږوله مینه
هغه ساده او کلیواله پیغله
کله به خوب ته راغله
څه پریشانه او خپه ښکاریده
چې به یې غرونو او ځنګلونو کې نارې وهلې :
« ای زما دژوند ارمانه !
ای زما دمینې پا چا!
اې پرما ګران شپونکیه !
وایه په کومه ورك شوې ؟!»
– او چې سهار به ویښ شوم
نو دنازو غیږ به لمده وه زما پرسپینو اوښکو
زه دنازو په مکیزو کې ګیروم
زه یې دزلفو په زنځیر تړلی
زه یې دمینې په زندان کې بندي
دهغې سترګې هم کوډګرې وې وژل یې کول
کټ مټ زما دښکلې مینې په شان
تش په همدو مره توپیر
چې زما مینه وه دکلي ساده
او دا په خوی ښاپیرۍ
هغه دکلي کوچۍ
دادمانیو حوره
نورېې ښایست هماغه

او توري سترګي يې هماغسې له ميني ډکې
خو زما خپله مينه نه هيريده
لا يې ياد ونو پرزړه اورلګاوه
بس زه دمينو اويادونو په بستر کې پروت وم
دسوزا اوساز پرپوله
دښاپيريو ميلمه
يادنازو بنديوان
دخپل هنر قرباني
دخپلې شنې شپيلۍ دسحر اسير.

## آدم جګړې نه راغی

خو يوه ورځ له ورځو
دښاپيريو په حرم کې يولوی جشن جوړ شو
دخوشاليو قيامت
او دښاديو محشر
دنڅاګانو ، پايکو بيو او ګډاوو دروبې
دمستو مستو خندا ګانو څپې
او چې خبر شوم نو آدم وله جګړې راغلی
ورسره لوی لښکر زموږ دکليوالوترشا
شمله اوچته ، غاړه هسکه ، يو سوبمن شهزاده
دهسکو غرونو دګوربت په شانې
څومره مغرور څو مره واکمن شهزاده

چې يې لات ديو يوځلي بيا و په ګونډو راوستي
لکه فاتح ابدالي
يو بريمن شهزاده
هوسۍ هم وه ورسره
ها زموږ دکلي دغرور او ځپلواکۍ واکمنه
چې دلويديځ دتوز ځنګله بندي وه
له دې خبر سره حريم دښاپيږ يو ته اختر راغی
ماخو ګومان کولو
ښايي اسمان دځپلې ټولې خوشالۍ لمنه
نن پر همدوی شيند له
اوځمکې ټول دخندا ګانو ګلان
ددوی پر سيمه شنه کړل
ذدې ښاديو منځ کې
نازو زما ځنګ ته راغله
هغه په شنو جامو کې
د ګل په شانې ښايسته ښکار يده
زه يې په مينه مينه ښکل کړم بيا يې وويل راته :
اې زما دمينې او ژوندون سروره !
ته پرې خبر يې چې داټوله خوشالۍ موږه ته تابښلې
دځپلواکۍ واکمنه
زموږ هوسۍ همدغه تاګټلې
ستا دا احسان دهيرولو نه دی

څکه نوزمونږ شهزاده غواړي خپل تاج تاته درکړي
خو ما نازو له لاسه ونيوه دربارته ولاړم
دښاپيريو دحرم دربار و ځومره ښکلی
هلته دتخت له پاسه ناست وزمونږ غازي آدم خان
چې زه يې وليدم را پاڅيد او راغاړې ووت
بيا يې خپل څنگ ته په تخت کينولم
را ته يې وکتل په مينه مينه
او زما شپيلۍ ته يې لاس ونيولو
سم چې ماور کړه نويې ښکل کړه -
بيا يې پورې کړه په سترگو سترگو
وروسته يې داسې وويل :
دلوړ وغرو دسر در واتله !
چې زمونږ مات غرور دې وگټلو
غواړم دهسکو سر در و پاچاهي تا ته درکړم
او خپله دغه نازولې خوږنازوهم ستاکنيزه کړمه
ته يې منې او که نه ؟
ماپه خوله هيڅ ونه ويل
يواځې تاج مې له غلامه واخيست
چې دغازي آدم خان مخ مې ښکل کړ
نو بيا مې تاج ورته پرسرکيښوده :
« دښاپير يو پاچاهي دې مبارک شه غازي !
ته توريالی يې دهوسۍ گټونکی

ننګ خوستاتورې وکړ
زما دشپيلۍ نغمويواځې تاته لارښوولې
زما سندرې وې يواځې دويښتيا انګازې
اوس چې هوسۍ ستنه شوه
زه به مې هم بيرته خپل شپول ته ولاړشم
هلته يو څوك لاماته لارې څارې
او زما يادونو سره مينه کوي
هغه دتورو تورو سترګو ميرمن
زما په تمه ناسته
لا مې په لاره کې پلونه په ليموښکلوي
ته پرې پوهيږې غازي ؟
هغې به څومره وې سلګۍ وهلې
آه ! چې شيندلې به يې وې څومره اوښکې
زما پر ورکو لارو
زه همدانن ورګرځم
رمه مې پاتې ده او شپول مې ړنګ دی
ميږې مې هره ورځ په خوب کېويني
واړه سيرلې به مې بغارې وهې
او ښکارې آس به مې غوسه وې څومره
تاته دې خپله پاچاهي مبارك
زه درنه ولاړم غازي !
زه درنه ولاړم غازي !

دغازي سترګې شوې له اوښکو ډکې
هك پك حيران چې راته څه ووايي
ښايي غوښتل يې ما په غيږ کې ټينګ کړي
يا مې لاسونه ښکل کړي
يا خو کوم څه ووايي
خوزه په بيړه ترې راپاڅيدم چې ستون شم بيرته
او چې مانۍ نه راوتلم نو مې مخې ته نازو راښنه شوه
هغه حسينه نازو
هغه زړه، وړونکې نازو
هغه دميني چينه
څومره ښايسته وه نازو
خومايې سترګو ته کتلی نه شول
مايې ليمو کې دخپل جرم کيسه نه شوه لوستی
ديو نيمګړی عشق دماتې جرم
ديوې لنډې نيمه خوامينې دپای او هيرولو جرم
ماګنهکار دمينې
لاڅه ويلي نه وو
چې دسلګيو منځ کې
راته نازو وويل :
زه بې له تا څخه ژوندون نه غواړم
يا مې حلاله کړه په خپلو لاسو
يا خو چې هر چير ته ځې ماهم بوځه

زه شهزادګۍ دښاپیریو دکول
زه نازولې دنازونو دکور
زه دماښیو دیوه
هو !
زه مغروره ښاپیرۍ به شمه ستا کنیزه
مګر دخدای (ج) له پاره
چې مایوازې دمرګي غیږې ته مه ورسپاره
نوما ددنګو دنګو غرونو شپونکي
چې درګ وینې مې دلمرله پلو شو جوړې وې
دهغې او ښکو ته نور نه شوکتی
ځکه مې لاس ورکړ او دواړه راروان شولو دغرو کلي ته.

# تلوله زیارت خخه ترکلي پورې

موږ لاروان وو تلو دغروکلي ته
لارموږه ټوله په ځنګلو پوښلې
یوازې لرې نه لیدلې مو دغرونو څوکې
چې په لمن کې یې زموږ د میني کلی جوړو
چې هلته زما د تورو سترګو ښکلې هم اوسیده
موږ لا ځنګله کې دځیړیو اوزیتونو منځ کې لاروهله
چې یوناڅاپه اسمان وریځودک کړ
څه تورې تورې وریځې
لکه شګوم دلات دیو

او لکه دود د دوزخ
لکه دتوربښامار له ژامو څخه وتې لړې
راغلې اسمان يې پټ کړ
موږ دباران له ويرې
ديو زاړهء او دنګ چنار ډډې ته ننوتو
ښکلې نازو ويريده
او ټوله پټه وه زما په غيږ کې
زموږه سترګې وې اسمان ته پاتې
خوباران نه وريده ء
يوازې تالنده وبريښنا کيدله
موږ لاحيران وو
چې ناڅاپه له اسمانه څنې تندر پريوت
هو!
تندر پريوت اوزموږه پرچنار راپريوت
ها دنګ اوزوړ چنار چې موږه يې په غيږ کې پټ وو
زموږ ترمخې څانګې څانګې شو او اور پرې بل شو
چنار لمبه لمبه شو
چنار ايرې ايرې شو
اور په ځنګله پورې شو
شنې پاڼې وسوځيدې
ناژو له ما زه له نازو نه ورك شوم
هر خوا لوګي هر خوا لمبې تاويدې

هره خوا ځانګې ماتيدې سوځيدې
ماپه نازو پسې نارې وهلې
خو هغه چيرې خدايزده زه چيرې وم
يوازې اور را تاويدلو هر خوا
خو ځوشيبې وروسته مې وليدله شنه کوتره
چې دلمبو له منځه ووتله والوتله
نو زما زړه صبر شوومې ويل :
آه خدايه شکر چې نازو دې بچ کړه

* * *

## اوچې نازو والوته

زه لاداوړ دښامار خولې ته پروت وم
لار دوتلو له لمبو ورکه وه
ماويل چې سوځم دادی او راخلمه
چې يو ناڅاپه مې پرسرد کوم چاسيورى خورشو
خدايزده سيمرغ و که هما وه دژوند
بس زه يې پورته کړم هواته دسره اورله منځه
دکوم جنت په لوريې بوتلمه دشور له منځه
لرې او ډير لرې دشنو لويو ځنګلونو منځ ته
دچنارونو دځيريو د زيتونومنځ ته
هلته وه پته د پيريانو زړې ونې سره
يوه مانۍ ولاړه
دسپينو ستورو له الماسو ، له مرمرو جوړه

فضايي تړوله وه دميني له سندر وجوړه
دسپينو سپينو شرشرو دترنم په منځ كې
يوه سرلوړې يوه دنګه مانۍ
هومره ښايسته وه لکه خيال دشاعر
څه ځليده دغه ګلرنګه مانۍ
اوزه يې مخ ته ولاړ
چې خدايه څه به کيږي
زما د ژوند داسر ګردانه پاڼه
بيا د کوم باد پرلمن پرئوتله
زه لا حيران وم حيران
چې چا مې لاس ونيوه
آه ! څومره ښکلي لاس و
څه نازولي ، څومره سپين وڅومره پوست وخدايه!
او چې دلاس ميرمن مې وليدله
يو ځلې بيا له هوښه ووتلم
يوه دحسن پرښته مې وه ولاړه مخ ته
کټ مټ زما د هغې ميني په شان
کتل هماغه، ناز هماغه او ښکلا هماغه
مينه هماغه ، شور هماغه او ځلاهماغه
ما ويل چې ومې مونده
ماويل چې مينه مې ده
ماويل قربان دې شمه ومې موندې ...

مگر افسوس افسوس
چې زما مينه نه وه
زما دښکلې سترگې تورې تورې
خو ددې ښکلې سترگې بل ډول وې
ويشتل يې هسې وو وژل يې هسې
کتل يې هسې وو مُسل يې هسې
يوازې رنگ يې زما دمينې نه و
داسترگې شنې وې دا ويو په شانې
شنې داسمان دشنو ښيښو په شانې
بس زه پرې پوه شوم چې پردۍ ده زما مينه نه ده
خودې هماغسې کتل راته په مينه مينه
ماويل چې څه دي اې دحسن او ښايست ملکې !
ته چې تصوير يې زما دښکلې جانان
يوازې سترگو کې يې رنگ نه لرې
دتورو تورو ليمو جنگ نه لرې
وايه چې څوك يې او له کومه راغلې ؟
دکوم طلسم له سدومه راغلې ؟
خوښکلې پيغلې لا څواب کې راته هيڅ نه ويل
لايې همداسې زما سترگو ته کتل په مينه وړې نظر
خوشيبه ورروسته رانږدې شوه ماته
بيا يې ښايسته ليچې راپورته کړلې
دمړوندونو هارېې وتاړه زما پرغاړه

او زما پر شونډويې دشونډو و باران ووراوه
دتودې غيږې دسکروټو کان يې ووراوه
اوزه يوه‌شيبه کې ډوب شومه هم وسوځيدم
دخوند په سيند کې ، دهوس په اور کې

## نو دغې پيغلې راته داسې وويل :

زه له اوو غرونو اوو سيندونو هاخوا
دماښامونو دوطن شهزادګۍ
او دلات ديو هانازولې لور يم
چې په ځوانۍ کې دمرګو نو واك په لاس کې لرم
دهغو دنګو شاه زلميو ژړيو مرګ وم چې شپيلۍ غږوي
چې چيرته ناست وي په کيږدۍ کې
او سپوږمۍ نڅوي
مادهغوله ځوانيمرګو زړونو وينه ويسته
مايې په ستونې کې‌وژ له د ژوندون سندره
او ورته غوږکې مې ويله له هستۍ نه دبيلتون سندره
مازلمې ځکه وژل
څو چې په خپلې شپيلۍ مات نه کړي زموږه ابليسې طلسم
نو زه دلمر دراختوسيمې ته
او دداهسکو دنګوغروکلي ته
ددې له پاره وم راغلې ګرانه !
چې دزلميو دشپيليو ستونې پرې کړمه ګونګې يې کړمه

خویوه ورځ له ورځو
ستاسو پرکلي باندې پېښه شومه
ته مې دشنې څېرې تر سیورې لاندې ناست ولیدې
چې په کوډګره ساه دې
چاته شپیلۍ وهله
ته ډیر ښایسته ښکاریدې
لکه ریدی لکه غاټول دبیدیا
لکه روڼ ستوری دسبا ځلیدې
او ستا کوډګرې شپیلۍ
ستاښکلې دنګې ځوانۍ
له مانه زړه واخیسته
زه چې دښمنه دشپیلیو دسندرو ومه
زه چې وژونکې دځوانیو دلبنکرو ومه
ما !
همدا ماهم پرتازړه بایلو ده
اوزه پرتا هومره مینه کړم خدای (ج)
چې لیونۍ شوم هرڅه هیر شول رانه
ځان رانه ورك شو او جهان مې ورك کړ
دخپل ښایسته غرور کاروان مې ورك کړ
ته مې ونه وژلې ، نه مې دې شپیلۍ واخیسته
یواځې څنګ ته به دې کیناستم
او ټوله ورځ مې تاته کتل
روح مې داستا دشپیلۍ تال کې زنګاوه، زنګاوه،
ژوند مې ستا عشق کې ډوباوه، ورکاوه،
خو یوه ورځ له ورځو

چا رانه ورك كړې رانه غلايې كړلې
رانه يې يوړې خدايزده كوم لورې ته
نه دې دښكلې شپيلۍ غږ راتللو
نه مې دې پل، نه كوم اثر موندلو
زه ليونۍ شوم ليونۍ ليونۍ
لكه بنگساره سارانۍ ليونۍ
څويوه ورځ مې په دې دښتو كې ابليس وليده
ماورنه ستادنوم تپوس وكړلو
او دهغه له خولې خبره شومه :
چې ستاشپيلۍ زموږ طلسم مات كړ
او آدم خان ستا دنغمو په مرسته
دآزادۍ هوسۍ ستنه كړه بيرته
ما ويل چې سنه شوه گوندې هير به دې كړم
گوندې چې مينه دې په كركه واوړي
څكه چې تازموږ غرور وواژه
خو زما داهيله تر سره نه شوه
ستامينې لا په زړه كې زور واخيسته
عشق دې له مانه دژوند پور واخيسته
دريسې وگرځيدم وگرځيدم
ايله مې نن دخپل طلسم په زور
په دې ځنگله كې داسې وموندلې
اوس هم لا نه پوهيږم خوب دې كه رښتيا دې وينم
نه نه رښتيا ده ته مې غيږه كې يې
زه ستا دمتو زور په ځان كې وينم
اوستادمينې شور جهان كې وينم

له نن نه وروسته دا مانۍ او یولښکر دمغربي سپاپیرو
دغه سپرلی دغه ښکلا دغه ژوند
یوزه او ته به یو او مینه به وي
ته به زما دزړه اوځان پاچایې
زه به دې غیږه کې ټول عمر تیر کړم
له تا به تل چار پیر ومه لیچې
په خپلو زلفو به دې پټ ساتمه
سپینه خولګۍ به درکوم درکوم
په ښکلي نازدې نازوم نازوم
ته دې شپیلۍ غږوه
زه به دې ناځمه سرود ته لکه سپینه ماره
ته دې ځوانۍ ځلوه
زه به دې مخ ته شمه شنه هنداره ...

## اوزه شوم داسې ددې پیغلې اسیر

نوله دې ورځې وروسته
زه دلویدیځ دماښامانو دښار
دشهزادګۍ اسیر شوم
دچا دشنو سترګو په دام کې ګیر شوم
دوخت کاروان همداسې تللو تللو
اوزه یې هم ځان سره وړلم یوه ورك منزل ته
ورځ په جامونو او سندر وکې ډوب
شپه هم دغیږې په خوندونوکی ډوب
ومه دخدای (ج) دنعمتونو میلمه
دښایستونو اورنګونومیلمه

مگر افسوس چې دا جنت جنت ژوند
ماته دوزخ دوزخ و
زماليوني زړګي هماغه ورکه مينه غوښتنه
ها کليواله هغه دنګه نجلۍ
هغه حسينه هاملنګه نجلۍ
هغه دتورو تورو سترګو ميرمن
هالومړنۍ ها آخرينه مينه
چې زه يوازې دهغې په ياد اوخيال ژوندی وم
دساه مې تله راتله هغې سره وو
زه له هغې ، هغه له مانه ډکه
هره شيبه مې زړه هغې سره و
مگر افسوس چې اوس اسيروم اسير
هوکې اسير له دې فرنګې سره
دغې دشنو سترګوګلرنګې سره
لکه تړلی په کمځوبې چې يم
نه ترې وتی نه تبنتيدلی شومه
زه يې دکوډو په زور بند ساتلم
پر مايې وکړابليسي طلسم
پر ماراتا و ودوريښمين وريښمين نظر زنځير
دورځو مياشتو دکلونو يو کوډ ګر زنځير
خوله کلونو يو کال
او يوه ورځ له ورځو
چې په ځنګله باندې راپريوتل
دوسپنووحشي آسونه
له رنګه تور په سترګو سره، ووځه ياغي آسونه

چې پرې سپارهء وو پيريان
په سرېې الوتل دسربو او فولادوكارغان
او دې كارغانو دغضب اور په ځنګله وشينده
نو دشين سترګې مانۍ هم تالا شوه
خدايزده پخپله دلويديځ شهزاد ګۍ څه شوه
او په كومه ولاړه

زه هم آزاد شوم آزاد
مګر حيران ومه او نه پوهيدم
چې لا دوخت په زړه كې څه پاتې دي ؟!

# دریمه برخه

## پرشینکي کلي مې وربړي د اورونو باران

چانه پوښتنه وکړم ؟
زما دژوند دا ناڅرګنده لاره چیرې رسي ؟
آهای !!!
له چانه وپوښتمه
چې زه په کومه ولاړشم
داڅه دسرو پیریانو غځاسته ده
او څومره شور دی ؟
زما دناز په خوب ویده کلي ته کوم لوري نه لار تللې ده ؟
وحشي آسونو هر څه پښو لاندې کړل
دهسکو دنګو غرونو کلي ، هم ځنګل هم خلك
نو زه به چیرته ولاړ شم ؟

خدای (ج) خبر زما پرشپول به څه راپيښ وي
آخ ! ماته ګراني رمې
کومولیوانو به داړلې يې لادارې به دې
زما اصيله ښکاري آسه ! خدايزده
چې به دکومو وسپنيزو آسو
په تور دروبڼ کې ګيريږي ؟
آه ! خدايه نه پوهيږم
چې زما ودان کلی به څومره رنګ وي
خدايزده زما دتورو تورو سترګو
هغه بيبا که هغه مسته ليونۍ مينه به چيرې وي اوس ؟
خدايه قربان دې شمه ويې ساتې !
خدايه ! ړندې کړې دپيريانو سترګې
که به بد ګوري ورته
دادي درڅمه مينې !
زما دتورو تورو سترګو ميرې !
او له دې وروسته مې لتهون پيل کړ
دخپلې مينې لتهون
خدايزده چې چيرې به وي
زه مې دکلي په لور مخ ته ځمه
لادپيريانو لښکر ځغلي هر خوا

## کله چې کلي ته راورسيدم :

آه خدايه داڅه وينم ؟
کلی مې څومره بدل شوی په رنګ
هرڅه يې سره دي ، ديوالونه او کوڅې يې سرې دي

دڅمکو فصل ، گو درونه او ویالې یې سرې دي
زلمي ځادرنه لري
دنجونو سریې لوښ دی
ربه زما پر کلي څه راغلي ؟
چایې غلاکړې ده درنگ شهزادگۍ
چایې لوټلې ده دخوند شهزاد گۍ
زما دښکلي ماشومتوب تاج محل
زما دمستې ځوانۍ ښکلی حرم
زما په ستور وښکلې شپې هم چاسرې کړې رانه
څومره بدرنگه شپې دي
ښکارې په وينو سرې دي
کلیه ! په تامې داسې شپې چیرې هم نه لوریږي
زه دې لیدلی داسې نه شم کلیه !
دوینو رنگ کې مې ډوب نه خوښیږي
زه درنه څمه کلیه
دهغو غرو په لوري
چې مې دمینې راز په زړه کې لري
چې مې دمینې غږ په خوله کې لري
ښایي چې تابه هیر کړم
خوخپله مینه هیرو لای نه شم
هغه دتورو تورو سترگو میرمن
هیڅکله هم له زړه ویستلای نه شم
ځکه هغه ما هیرولای نه شي
زړه نه مې لرې غورځو لای نه شي
ورځم دغرونو غیږته

گونديږ چې هلته به يې بيا پيداکړم
هو زه باور لرم چې وبه يې وينم
ځکه چې خدای (ج) هم دمينو مل دی.

## اوما دتوروغرونو لار ونيوه

ځمه دغرونو خواته
او وايم داسندرې :
« ليونۍ مينې كـــړم اشناله بيابانه ســـره
پر يږدئ چې گرځـــم ليـــونی په غـرونـــو
دليـــونۍ مـــينې له لاسه
ناست يم دغم دغره دپاسه
دتصور په ټال زنگيږم له خپل ځانـه سـره
پريږدئ چې گرځم ليونی پـــــه غــرونـو
مينه کې دو مره بې پروايم
چې اوس خوشاله په سارايم
ماته دی غوره ببر سر څيرې گريوانه سره
پريږدئ چې گرځم ليونـــــی په غــرونو
دچا دشوخ نظر لـــه پـــاره
په غرونو گرځم نـاكـړاره
دمينې شور مې لگيدلی له اسمانه سره
پريږدئ چې گرځم ليونی پـــه غرونو. »
خو يوه ورځ له ورځو
کله چې ورسيدم
يوې رڼې اوښايسته چينې ته
راته دتيرو وختو خيال پيداشو

پر زړه مې و وریدل تیر یادونه
هغه دپیغلو ډله
چې به چینې ته راتلې
په خندا ګانو مستې
لکه دګلوښانګې
په نرۍ ملا ماتیدې
ترشنو منګیولاندې
او هغه ورځې زما دتاندې ځوانۍ
چې په سندرو مست وم
ښومره په سوز به مې شپیلۍ وهله
هغه ښایسته وختونه
هادجنت عمرونه
لکه یو خوب چې وینم
خو اوس چینه میراته
ګودریې ورك دی لاره هم نه لري
ښکاري کلونه کیږي
چاورنه ښاښکی او به نه دي وړي
هیچایې نه دی په هنداره کې وربل جوړکړی
چایې په غاړوکې خندلي نه دي
چايې ترښنګه دشپیلۍ نغمې وهلې نه دي
ما په ژړا کې ورته داسې وویل :
خو ګوره ښکلې چینې
دادی زه بیا راغلمه
په زړه زخمي په ژړیدلو سترګو
خیر دی که ته هم راته ژاړې په بې غږه ستونې

زه به نن بيا درته شپيلۍ ووهم
زه به نن بيا درته زړې خاطرې
په چيغو وژړوم
دادی چينې درته شپيلۍ وهمه
راځه چې دواړه په سندرو او نغمو وژاړو
راځه چې دواړه دغمونو په شيبو وژاړو
او ماشپيلۍ په شونډو بيا کيښوده
يوه دسوز او سازلمبه مې بل کړه
ما ويل چې نن دچينې هډ سوځوم
ماويل چې نن په ځنګله اورلګوم

* * *

اوله دې ورځې وروسته
چې هره ورځ به غرورغو کې په لټون ستړی شوم
نو مازيګر به دهمدې چينې تر غاړې راغلم
او دشپيلۍ له ستړي ستوني به مې سر کړه دغمو نونغمه
زما شپيلۍ ، زه اوچينه ، بس همدادرې ملګري
چې يادول مودورك عشق هغه زاړه يادونه
کلونه تلل ، کلونه اوښتل او ژوند تيريده
دعمر سيند ستړی ستومانه لا پرمخ بهيده

## خويوه ورځ مازيګر

کله چې زه دچينې خواکې ناست وم
اوله شپيلۍ سره مې يوځای ژړل
ناڅا په غږ دکوم يو آس راغی
چې دځنګله دشنو زيتونو او ځيريومنځ نه

دچینې خواته راته
واه څومره ښکلی آس و
لکه دشنو پاڼو په منځ کې رازروانه بیړۍ
او هومره سپین ولکه واوره
لکه لاس زما دښکلي جانان
او پردې آس وه یوه پیغله سپره
زلفې یې بادوې په اوږواخیستي
او دټیکري څنډه یې
بادرپوله داسې
لکه بیرغ دغزا
هومره ښایسته وه پیغله
لکه دقاف له غرو راغلي دارم ښاپیرۍ
دسترګو رنګ یې وزما دښکلي مینې په شان
کټ مټ هغې غوندې وه
لږ څه مغروره او عاصي ښکاریده
زما د جانان سترګې له مینو ډکې
خو ددې سترګې وې له وینو ډکې
زما دیار له کتو ناز وریده
خو دا کاته جګړه دتورو کوي
نوزه پرې پوه شوم چې زما مینه نه ده
راغله او راغله دچینې ترڅنګه
هغه مغروره قهر جنه ښځلۍ
هغه حسینه کبرجنه ښځلۍ
په مایې داسې غږ کړ :
ولې دې بیا یمه راغوښتې ځوانه ؟!

ووایه څه وایې زه دلته یمه
خو زه دغرونو پردیس
او دځنګلونو ملنګ
زه دچینې مینجور
او دښکلا لیونی
دخوشیبو له پاره
ددغې پیغلې په ښایست کې ډوب شوم
زړه کې مې داسې وویل :
« آه خدایه څومره ده هغې ته ورته
ها زما ورکه مینه
هغه دتورو تورو سترګو میرمن
اوس خدایزده چیرې به وي
آیا دا پیغله به خبره نه وي
چې زما د تورو تورو سترګو ښکلې چیرته اوسي ؟
ځکه نو ما ورڅخه وپوښتل چې :
زه ددې کلي لیونی شپونکی یم
ټول ژوند مې مینه کړې
یوه سپیڅلې مینه
خو اوس دورکو ورکه
یوه بادوړې مینه
کټ مټ داستا په شانې ښکلې مینه
اوس پسې ګرځم لیونی په غرونو
خو راته وایه نجلۍ
چې ته دکوم ... راغلې ښاپیرۍ یې دلته ؟

* * *

هغې زما سترگوته نيغ وکتل
آس نه راکوزه شوه زما څنگ ته راغله
راته يې بيا بيا ښه په ځيروکتل
لږ څه موسکۍ شوه بيا يې داسې وويل
زه خو پردۍ نه يم شپونکيه کليواله دې يم
ستا کليوال راته «مغر وره» وايي
ښايي چې نوم به مې وي
زه هم مينه يم او ټول عمر مې مينه کړې
کلونه وشول ستا په کلي کې زېږېږم اوبيا بيرته مرمه
زه ستا دکلي دپيغلوټو دارواوو ملکه يم ځوانه
درې ځلې مړه شوم بيرته وزېږېدم
درې ځلې يې ووژلم
درې تورو ووژلم
مگر پوهيږې چې زه بيا ولې دنيا ته راځم ؟
دا هر څه ستا ددې شپيلۍ له لاسه
دغه کوډگرد سحر گره شپيلۍ
چې هر پوکي سره دزرو طلسمو نو دروازې ماتوي
هره نغمه يې ده دکوډوځاله
او هر سروديې کرامات وروي
کله چې ووژل شم
ستا دشپيلۍ په نغمو
بيرته ژوندۍ شم او دنيا ته راشم
او دادی بيا ستاد شپيليو سرود
ځانته را وبللم
زه دخپل کلي دپيغلو ټو اروا

اوزه هنداره دپیغلو ټو دنیمزالو هیلو
بیا ستا شپیلۍ ژوندۍ کړم
نو راته ووایه چې څه وکړم
په چا باندې ځان بیا ووژنم ؟
ووایه بیا دخپلو وینو جام په چاوشیندم ؟
ووایه بیا چیر ته سلګۍ ووهم
او چیرته ومرمه بیا ؟
دښکلې پیغلې دې خبروته حیران شوم حیران
کوم وژل ؟!
کومې کوډې ؟!
کومې وینې ؟!
آه خدایه ! دا څه اورم
ووایه ښکلې پیغلې څوک دې وژني ؟
داستا دحسن قاتل کوم ظالم دی ؟
ووایه ځار دې شم کیسه دې وکړه
اې نجلۍ !
زه درنه همد ومره غواړم
چې دخپل ژوند ټوله کیسه دې وکړې
دښکلې پیغلې سترګې
لرې او ډیرې لرې وګنډل شوې
شونډې یې ورپیدې
یوڅه په سوچ کې ولاړه

## اونجلی داسې راته وکړه کیسه :

زه ددې کلي يوه مسته پيغله
هومره مغروره چې به خلكو د «مغروری» په نامه پيژندم.
يو ځوك پرمامين اوزه وم پر هغه مينه
نو ډير كلونه پخوا
يو كال هغه وخت چې لا زموږ كلي كې فصل دغنموشين و
هغه مهال چې كليوال وولــه لات ديو سره جگړې ته تللي
هغه دوياړ كلونه
هغه دتورو فصل
چې شازلميان مو د غزا ډول سره
په اتنړو اتنړو جنگ ته ورتلل
زما مين هم چې دكلي يو مغرور زلمی و
توره ترملا كړه او خپل ښكلی آس يې هم زين كړ
هغه غزا ته تللو
دمخه ښې په وخت يې داسی وويل :

**« غزا ته ځم په وطن جنگ دی**
**يوه خوله را كړه چې مې زړه دزمري شينه »**

خوما هم پورته كړ منگی اوږې ته
او خپل مين ته مې دتگ په وخت كې داسې وويل :

**« جانانه جنگ ته ځان تيار كړه**
**سنگر تـه پـاس به اوبـه زه درخـيژومه»**

زموږه ټول كليوال جنگ ته ولاړل
او له لات ديو سره جگړه پيښه شوه
زموږ جگړه وه د «ميوند» دښته كې

څه خونړۍ جګړه وه
څه ليونۍ جګړه وه
چې دلات ديو هامغربي ديوانو
زموږ دکلي ډير زلمي ووژل
زموږ بيرغچي يې هم په غشي وويشت
هغه ناري کړې هلۍ ترې يم او به راوړئ
اوزه دهغه خواته ورغلم اوبه مې ورورې
خو دهغه په وينو سرومنګولو
نور دبيرغ اوچتولو توان نه درلوده
دغزا لوړه جنډه ورو ورو پريوتله ورنه
هغه په خاورو لويده
ځکه خو مامنګۍ پرڅمکه کيښود
بيرغ مې خوا پورې ټينګ ونيولو
او مخامخ مې دغازيانو پرسنګر پورته کړ
جنډې له باد سره نڅاپيل کړه
زموږه ستړي غازيان
زموږه تږي غازيان
آه خدايه ! څومره يې په وينو سره وو
ما خپل مين په کې ليدلی نه شو
خدای (ج) خبر چيرې به لات ديوته مخامخ ولاړو
ماويل چې هرچيرې وي
خو زما ناره به اوري
ځکه مې غږ پرې وکړ:

**« که په ميوند کې شهيد نه شوې**
**خـــدايږولاليــه بې ننګی ته دې ســاتينه**

**خال به دیار له وینو کیږدم**
**چې شینکي باغ کې سورګلاب وشرموینه »**
او زماله دې غږ سره
زلمو کې وینه تا وشوه
غازیانو چیغې کړی :
**الله اکبر !!**

ټول له مورچو ووتل
میوند داور تنورشو
وحشي آسونه یو پربل وختل
سرونه والوتل لاسونه پرې شول
او ما دتورو په بریښنا کې ولید خپل ننګیالی
هازمامین چې دلات دیو لاس یې په توره پرې کړ
خو خپله هم دمغربي دیوانو تورو وخوړ
هو ! زما مین شهید شو
زه هم کوم چا په غشي وویشتمه
او ما دمرګ په وخت کې داولیدل
چې دلات دیو لښکر تالا ترغې شو
ټول مغربي دیوان یې ووژل زموږ شازلمو
او چې دسوبې بیرغ
شوتر اسمانه پورته
زموږ کلیوالو زه او زمامین په خپلو اوږو پورته کړلو
او دپاچا په امر
دښاپیریو په ماڼۍ کې خښ شو
زموږ په زیارت کې ښاپیریو پاچاهي جوړه کړه
هلته زموږ زیارت و

زموږه دوه مینو
چې دواړه ټنګ په ټنګ دمینې په خوب پریوتلو
او دګلونو دارمان غیږې موهلته یو په بل تودې کړې
خو ما دخپل مین دغیږې جنت ډیرونه لید
ځکه چې ستاشپیلۍ دنازله خوبه ویښه کړمه
ستادې کو ډګرې شپیلۍ
یوځلې بیا ددغه ګلې پرلمن راشنه کړم
داځلې بیا وم یوه مسته او مینه پیغله
له ښکلا ډ که او مغر وره پیغله
هو مره مغروره چې به خلکو د «مغرورې» په نامه پیژندم

## خو دا ځل زموږ ګلي بدل وبدل

زه ورته راغلم خو دګلي رنګ بدل ښکاریده
هرڅه یې سره وو
لکه وینه
لکه قهر لکه اور ددوزخ
داځل زموږ پرګلي
دشمالي پیریانو سورلښکر یرغل کړی و
دقاف له غر ونو هاخوا
دکنګلونو دښار
او دسرو یږو دځنګلونو پیریان
ددې پیریانو دلښکر مشر «اوردیو» نومیده
هغه هم زموږ دګلي
دخپلواکۍ پرملکې مین و

هغه هم زموږ هوسۍ له ځان سره شمال ته بوتله
دښاپیریو سلطنت یې ړنګ کړ
او زموږ زیارت ته یې هم اور ورته کړ
د آدم خان په ځای یې راوست یو «بوډاچوپړګر»
دا چوپړګرو زموږ دکلي کو ډګر
چې له ابلیس څخه یې کوډې زده کړې
او په جادو یې پاچاهي دښاپیرو ورانه کړه
خدای خبر ستا ها نازولې نازو چیرې ولاړه
او خدایزده نورې ښاپیرۍ یې څه شوې
اور دیو موکلي ته پیریان راوستل
او لښکر یانو یې په خپلو تورو
کلی دسرو وینو باران کې ډوب کړ
له یوهء کاله وروسته
اوردیو زموږ کلي کې
دخپلو بوډا چوپړ په مرسته پاچاهي جوړه کړه
دشمالي پیریانو سره پاچاهي
چې به بوډا چوپړګر
زیندۍ پرغاړه
دپیریانو بندګي کوله
او په دې ډول یې زموږ دکلي دپیریو ویاړته اور ورته کړ
خو زموږ سپیڅلیوکلیوالو له پیریانو سره جنګ ته ملاوې وتړلې
او د زیارت یو مستانه مینجور
هغه سپیڅلي ملنګ
ها بابه قو هالیوني قلندر
[illegible] ستګو په بریښنا کې ټول جهان ځاییدهء

زموږ د زيارت تر رنګيدلو وروسته
رباب ترملا کړ سريې وتاره په داسې جنډه
چې په کې تورې ، سرې اوشنې کرښې وې
دکلي ځومست مستان او قلندر زلمي يې
سره را ټول کړل دقيام له پاره
دعشق په نوم يې سره ورکړل خپل زلمي لا سونه
چې هم هوسۍ وګټي
او هم دسرو ، سرو شالي پيريانو
لښکر له کلي نه بهر وشړي
زما مين هم له ملنګ سره ولاړ
زه مې مين سره يوځاى تلم دپيريانو جنګ ته
اويوه ورځ له ورځو
چې دپيريانو لښکر
زموږ دکلي دغنمو فصل وسوځاوه ،
په هغه ورځ ماله همزولو سره
دمستو مستو ليونو لښکر ته
له دې چيني څخه او به وروړلې
کله چې اور په کرونده کې بل شو
او سره پيريان ورنه چارپيره په نڅالګياوو
ما او همزولومې په چيغو چيغو
هغوئ ته وکړې ښيرا
هغوى چې زموږه داښيرا واوريدې
څه په غوسه شول چاکټ کټ وخندل
موږ لا ښيراکولې
چې يوناڅاپه دبوډاچوپړګر

یوه ناهلې بچې
هغه زما کلیوال
چې د پیریانو عبادت یې کاوه
خپل غشي زما پرتټر و ورول
زه یې بیا ووژلم
مگر داځل دمرگ خوند هومره تریخ و
لکه دزهر وپیاله
ځکه دخپل کلیوال لاس وژلم
خپل لاس وژلم په پردیو تورو
خپلو وژلم او پردولیدلم
خدایه ! څه سخت ساعت و
خدایه ! قربان دې شمه څومره تریخ و
هو زه یې ووژلم
او خپل مین ځخه یې بیله کړمه
خو دا بیلتون مې هومره اوږدهم نه شو
ځکه چې ستا شپیلۍ یې مزې لنډکړل
ستا دې کوډگرې شپیلۍ
یوځلې بیا ددغه کلي په لمن کې شنه کړم
داځلې مسته نه وم
مگر غرور مې درلود
هومره مغروره وم چې خلکو د «مغرورې» په نامه پیژندم
بیا راغلم خپل کلي ته
خو داځل هم کلی بدل ښکاریده
کلي دسروپیریانو تیغ لاندې لاساه راکښله

# مګر لات دیو ژوندی و

سم چې پیریان زموږ پرکلي راغلل
ابلیس لات دیوخبرکړ
او داکیسه یې وکړه
چې اور دیو څنګه زموږ له کلي څخه بوتله هوسۍ
څنګه زاړه چوپړګروپلورله
هغه دهسکو هسکو غرو دخپلواکۍ ملکه
دکنګلونو دهیواد پرپیري
او په دې ډول د اوردیو اولات دیو
هغه زړه او پخواني دښمني بیا ژوندۍ شوه
لات دیو دسروزرو کاروان راباکړ
او هغې دښتی کې یې واړول چې
په لومړي ځل یې وابلیس لیدلی
داځل یې بیاهم دابلیس په مرسته
اوم دکوډو اود زرو په زور
زموږ د کلي ښکار ته ملا ټینګه کړه
سم چې ددنګو دنګو غرو دکلي
زلمو پیریانو سره جنګ ته ملاوې وتړلې
نو پرهغوئ یې دسرو زور باران ووراوه،
ښایي هغوی باندې یې کوډې وکړې
هغوی یې وو یشل په ځولښکرو
او هر لښکر ته یې بیا داسې وویل :
ولاړشئ !
جګړې ته دپیریانو ولاړشئ !

او دپیریانو دوستان هم ووژنئ
هرڅوك چې وي
که کلیوال موهم وي
ویې وژنئ !
ویې تړئ !
مینو ته یې اور ورته کړئ !
هر چا چې ډیر ووژل
زه به دکلي پاچاهي ورکړم هغه لښکر ته
هر چا چې ډیرې وینې وبهولې
هومره به یې ډکه کړم لمن له زرو
او له دې وروسته شو زموږ کلی دوینو کلی
یو داور ونو او مرګونو کلی
دسیند او به زموږ له کلي څخه
دتیریدو په وخت کې سرې اوښتې
او باد به تل دمړو کوپړیو ایرې ځان سره وړې
دابنکاره نه وه چې څوك څوك وژني
یوازې کلي و په وینو کې ډوب
یوازې مړي په کوڅو کې سرپه سرپراته وو
خو خدای (ج) خبر چې کلیوال مو خلاصیدل څنګه نه ؟!
جګړه د «دیو» او د «پیري» ترمنځ وه
او ګوزارونه وو ددوی دمتو
مګر سرونه به زموږ دکلیوالو پرې شول
پښې او لاس به زموږ دکلي دځوانانو مات شول
پیریان لښکر و څخه نه ویریدل
دهغوی ویره له ملنګ څخه وه

او دهغو له مستو مستو شاه زلمیانو ځنې
ځکه یوازې ووهغوی
زموږ دکلي ددښمنو دښمن
دزیارتونو مستانه مینجور
په اتنو او په سندر وکې غزا کوله
هغه اور دیو او لات دیو دواړو سره جنگ کولو
او کلیوالو ته یې تل داویل :
پام چې غلط پرې نه شئ
لات دیو زموږ دکلي زوړ دښمن دی
راځئ دخپلو کلیوالوژل پرېږدو
له پردو سره جګړې ته ووځو
هم له دیوانو هم پیریانو سره
دخدای (ج) له پاره زما دکلي خلکو !
اخر په تاسو داڅه چل شوی دی ؟
نیم په اور دیو خرځ شوی
نیم په لات دیو اوښتي
هغوی موسیل کوي
اوتاسو یو دبل دوینو تږي
دخدای (ج) له پاره ځان مو وخوځوئ
لږ څه راویښ شئ او دمتو په زور
دواړه له دې کلي بهر وشړئ
دواړه زموږه داووماران دي
او خوري مو هره ورځ په سر کې ماغزه
موږ نه یې عقل و بصیرت وړی دی
سمه لارنه پېژنو

يوبل نه سرپرې کوو
يو دبل وينې څښو
اخر په کومه گناه ؟!
زموږه جرم څه دی ؟!
دوی دواړه څوك دی ؟
چې به موږ ته پاچاهي وکتي
راځئ چې ټول کليوال يو شو سره
راځئ دخدای (ج) په مرسته
راځئ په خپلو متو
لات ديو ، اورديو دواړه دخپل کلي په ونو پورې وځړوو
او بيا په مينه مينه
خپله هوسۍ راولو
بيا بنا پيرۍ راولو
هو!
ملنگ داسې ويل
او له پردو سره يې جنگ کولو
هغه ديوان وژل ، پيريان يې وژل
هاله لويديځ څخه راغلي ديوان .
هاله شمال څخه راغلي پيريان
او دکوډگرو طلسمو نه به يې هم ماتول
زما مين او زه «مغروره» له ملنگ سره وو
مابه هغوی ته دې چينې څخه او به وروړلې

# خو يوه ورځ له ورځو

مست مينجور په نخيدوراغی
ځني به يې واچولې
بيا به يې درب ورکړېښې ته
او ټولو مستو شاه زلموته يې ويل چې : له هغه سره اتڼ وکړي
کله چې ټول په اتڼو ستړي شول
نو دملنګ بابا ترمخ راټول شول
او له هغه نه يې ددې خوښي لامل و پوښته
دملنګ سترګې يوځل وځليدې
يوڅه په سوچ کې ولاړه
او بيا يې داسې وويل :
دوستانو شکر دخپل رب ادا کړئ
ځکه چې نورو نو داورديو دابليسي طلسم راز ماتيږي
پيريان به ټول زموږ له کلي څخه وشړل شي
تاسو خبر ياست که نه ؟
نوز دپيريانو هم طلسم مات شو
ځکه زموږ دکلي
هغه ورك شوی شپونکی بيا راغلی
ها دسندرو کوډګر
ها دشپيليو پاچا
چې له لات ديو سره دجنګ په وخت کې
له کلي خدايزده ښاپيريو وبوولی چيرې ؟
خو دا څو ورځې يې په برڅنګله کې
يوځلې بيا دنغموغږ راځي

هغه په خپلې ورکې مينې پسې ګرځي او شپیلۍ غږوي
او دا کوډګره شپیلۍ
بیا ماتوي طلسم
او زموږ ورکه هوسۍ
یوځلي بیا ویښیږي
هلته شمال ته دکنګلونوښار کې
او دهغې له ویښیدو سره سم
دکنګلونو هیواد
ورو ورو ویلیږي او ماتیږي پسې
دوستانو زیرۍ مې درباندې
چې دشپونکي شپیلۍ موبیا دخپلواکۍ ملکه
ښکلې هوسۍ ژغوري
او د اوردیو طلسم هم ماتیږي
دکنګلونو ښار به ویلې او ټوټې ټوټې شي
پیریان به هم په سمندر کې ډوب شي
او دیوې پیرۍ کوډګره بوډۍ
هاله هرڅه منکره
هغه په زړه کافره
چې سره پیریان زیږوي
چې یوه سترګه لري
هغه به هم په خپل تابوت کې پریوځي
زموږ هوسۍ به ورته خاندي سره بوډۍ به دتاریخ ډیران کې خښه شي او خـاورې به شي.

راځئ دوستانو چې اتڼ وکړو
راځئ ملګرو چې نغمې ووایو ...    * * *

ملنګ رښتیا وویل
هغه په هرڅه پوه و
دهغه سترګو کې جهان ځاییده ء
- ګرانه شپو نکیه واوره !
ستا دې کو ډګرې شپیلۍ
یو ځلې بیا هم هوسۍ وژغورله
او د۹ وردیو طلسم هم مات شو
سره بوډۍ مړه شوه داوردیو لاس او پښې هم پرې شول
او دپیریانو لښکر
مات او ګوډبیرته ولاړ شمال ته دکنګلونو- دهیواد په لوري
هغه بو ډا چوپړګرهم وتښتید

## مګر افسوس شپونکیه !

چې زموږ په کلي کې دوینو چینې وچې نه شوې
که څه هم مات شو دپیریانو جادو
مګر لات دیو ژوندی و
او لایې خپلې ابلیسي کوډې کولې پرموږ
سم چی بوډا چوپړګر
زموږ له کلي ووت
جګړې ته تللي کلیوال ستانه شول
خونه دوروڼو په شان
زلمي یې توره په لاس
او یو دبل وینو ته تږي تږي
دکلیوالو جرګه نه جوړیده

ځکه زموږ کلي کې فصل دغنمو نه وو
او له جرګې نه دغنمو وړي.
ابلیس په غلا وړي وو
ابلیس دهغو کلیو الو ترمنځ
چې له پیریانو سره یې جنګ کولو

لاړې توکړې

ځکه لښکر ، لښکر شول
او هر لښکر یې ودبل یودښمن
خپلو کې یو دبل دغوښو دهډوکو او دوینو وږي
نو لا څو ورځې تیرې شوې نه وې
چې مو په کلي کې لښکرو تور دروښ جوړکړ
تورې له تیکو نه راووتې او سترګې سرې شوې
دکلي خړې کوڅې بیا په وینو ورنګیدې
داځل بوډا او ځوان چانه پیژندل
هر چاله هر چاڅخه سرغو ځاوه
هر چا د هر چاکورته اور اچاوه
هرڅه تالا او لوټ شول
زموږ دنیکونو شملې
دا ناګانو ټیکرې
چاماشومان حلالول زانګوکې
چاله میرمنو نه حیالوټله
چابه له پیغلو پیغلتوب غلا کړ
چابه زلمي کتار کتار ووژل
چا به دخلکو دغنمو فصل وسوځاوه
چا به دکلي جوماتونه رنګ کړل

چابه دخلکو په هلوکو ژرندې تاوې کړلې
او دغه ژرندې به دوينو په ويالو گرځيدې
دکليوالو دسرونو منارونه مواوچت شول دومره
چې له هرځای ځخه به هر چاليدل
زموږ دسويو کلا گانو تور دودونه وو اسمان ته پورته
زموږ دغرونو لوړې څوکې هم په اور سوځيدې
لکه زموږ دکليوالو غرور
چې په مرگوکې ورك شو
داسې هو دنگو غروله شرمه ځان په اور پټاوه
زموږ دپيغلو لو پټې به هره ورځ تالا شوې
لکه دکلي باد موهم چې غل وي
ددغه کلي په اوږده ماضي کې
هيڅ کله داسې کيسه نه وتيره
دغسې توره دمرگونو او شرمونوکيسه
داسې د «ويار» په نامه تشه له وياړونو کيسه
داسې دوير اودماتم کلونه
داسې د درد داسې دغم کلونه
داسې داور او دلمبو فصل چې
زموږ دکلي شنه ماضي هم په کې وسوځيده
اوبنايسته زرينې پاڼې يې پرديو غلا کړې
زموږ ماضي ديوانو ووژله
زموږ ماضي پيريانو وخوړله
لات ديو داهر ځه ليدل
او په کټ کټ يې خندل
هغه زموږ له کليوالو نه کسات اخيسته

دخپلې ګوډې پښې
دخپلو ماتو لاسو
دخپل ډوب شوي لښکر
هغه ته داکوډې ابلیس ښودلې

## خوږه موسم څه پېښ شول ؟

واوره ښپونکیه زموږ دکلي دغمونو کیسه :
موږ دملنګ ملګرو
چې کلی داسې ولید
نو دلته لرې راغلو
او په ځنګلونو کې موځانته کړې جونګړې جوړې
په دې جونګړو کې ژړل به موسهار اوبیګاه
په کلیوالو او په کلي پسې
خو یوه ورځ مازیګر
زموږ په جونګړو کې غوغا جوړه شوه
ځکه ملنګ بابا دکلي له خوا
یو څوك په ګیږ کې راوړ
کله چې موږ ورغلو
نو دملنګ بابا په سترګو کې مو
په ټول ژوندون کې لومړی اوښکې لیدې
هوکې ملنګ بابا ژړل لکه چې
او یوه ښکلې نازولې میرمن
په خپلو وینو ډوبه
وه غځیدلې دملنګ پرلاسو

موږ له ملنګ بابا نه وپوښتل چې دا څوك ده ؟
هغه په چیغو چیغو وژړل او ویې ویل :
تاسو یې نه پیژنئ ؟!!
دا خو هوسۍ ده هوسۍ
دښاپیریو دپاچا ملکه
دخپلواکۍ ښځنتنه
موږ هم په چیغو سر شو :
زما مین وویل :
اخر ملنګ بابا دا کوم ظالم کړه داسې تپي
خدای (ج) دې کړي مات هغه لاس
خدای (ج) دې تباه کړي هغه ...
خو په دې وخت کې موږه ولیدل چې
تپي هوسۍ لږ څه موسکۍ غوندې شوه
زما دجانان په خوله یې لاس کیښوده
او په ځګیروي یې وویل :
« پام چې ښیراونه کړې
زما خو په خپل قاتل « درد » نه دی پیرزو
هغه چې زه په توره ووهلم
هغه زلمی هم کلیوال دی زموږ
خدای (ج) دې دهغه سرته هم خیر کړي
ما ویل دسولې پرښته به شمه
ما ویل دوینو سیند به ودروم
او دابلیس لارې به وچې کړمه
دښمنو زړونو کې به مینه شمه
خپل کلیوال به سره ورونه کړمه

او نيکمرغي به شمه
دهغه وخت په خير چې زموږ کلي کې فصل دغنمو شين و
خو هغوی زه په تورو ، ووهلم
او هغه توره چې زما بيرته راتګ ته پورته شوې وه -
زما په زړه کې خښه شوله
ښايي زما بيرته راتګ به د «انسان» - په وينو نه ارزيده
ځکه دخپلو کليوالو په لاس
زما ويني هم تويې شوې
ای خدايه ماوبښې !
ای خدايه ماوبښې !»
او دې خبرې سره
هوسۍ له هوښه ولاړه
پر مخ يې راغلې د دردونو خولې
بابا ملنګ چيغې کړې :
او به ! اوبه !
هله « مغرورې» ژر شه !
لږ څه اوبه راوړه !
او مامنګی پورته کړ
په منډو منډو دځنګلونو منځ کې
دغې چينې ته راتلم
ځکه يوازې دا چينه وه چې اوبه وې په کې
زموږ دکلي په څاه ګانو په سيندونو او چينو کې خو -
اوبه نه وې نږه وينې وې
او کليوال مو له اوبو ځخه روږه وو روږه
تش لښکريانو به روږه خوړله

او دا وبو په ځای يې ويني ځښلې
زه د چينې په لور راتلم چې لږ اوبه يوسم
خو يو ناڅاپه مې په لاره کې يو سيوری وليد
يو ببر سری سيوری
يو داسې سيوری چې دويرې له تيارونه جوړ و
وروسته بيا سيوري ډير شول
پنځه اوشپږ شول سيوري
او چې دسيورو خاوندانو ته مې پاس وکتل
هغوی مې وپيژندل
زما کليوال وو د «زمرولښکر» نه
هغوی مې مخې ته کتار شول کتار
ماويل :
چې لار راکړئ اوبو پسې ځم
خو هغوی وخندل او ويې خندل
کړس کړس خندايې وکړه
دهغوی ژبه د زمرو ژبه وه
او دزمرو په ژبه يې داسې وويل :
« اول زموږ زړونه خړوب کړه بيا اوبو پسې ځه »
آه خدايه دا څه اورم ؟!!
زما ها درانه کليوال څومره سپک شول
چې اوس دخپلې کليوالې پرحيا بلوسي .
خو هغوې بيا راته په ژبه دزمرو ، وويل :
ته زموږ دډلې نه يې
اوستا په وچويلې کې نښته د زمرو نښانې
ځکه زموږه نه يې

اوس ته یو جام يې او موږ ترې زمریان
راشه زموږ غیږې ته
راشه چې ستا پر رانه وچويلي کې
د زمرو نښه کیږدو.»
آه خدایه اوس څه وکړم ؟!
له مرګه پرته بله لار نه لرم
خدایه زما دکلیوالو مل شې :
ما خپله لار پرېښوده
زمرو تر شا راپسې منډې پیل کړې
خو زه په منډه منډه
د لوی ګړنګ تر خوا را ورسیدم
لا کلیوال زمریان تر شارا تلل
خو ماد لوی ګړنګ پرانیستې غیږ ته
خپل ژوندون سوغات ورکړ
بس یوه چیغه او دمرګ دروازه
اوزه شوم داسې قتل
ددریم ځل له پاره
مګر داځل دمرګ خوند هومره تریخ و
لکه ز قوم د دزوخ
داځکه نه یواځې خپل وژلم
بلکې له مایې دحیا د اخیستلو تمه هم درلوده
خدایه څه سخت ساعت و
خدایه ! قربان دې شمه څومره تریخ و
* * *
شپونکیه داوه زما دتیرو ژوندونوکیسه

درې ځلې مړه شوم بیرته وزیږېدم
درې تورو ووژلم
خو درې نغمو ستا دشپیلۍ ژوندۍ کړم
اوس چې ماوینې
زه ددریوارو نیمزالو روح یم
یوه «مغروره» یم په درې خیروکې
تل په دې غرونو او ځنګلونو ګرځم
اوکله ځم دځپل مین دړندو سترګو کورته
هغه ته خوب غوندې شم
هغه لا اوس هم په ړندو سترګوماخوب کې وینې
او ته پوهیږې هغه ولې ړوند دی ؟
راځه له ما سره چې ور دې ولم
پاتې کیسه به درته لار کې وکړم.

# ځلورمه برخه

## زمـوږ دمينې ديدن

## او مـوږ دوه ليوني

## خدای خبر چيرې به ځو

نجلۍ مې لاس ونيو
او دواړه په سپين آس سواره شو
هغې مغرورې مستې پيغلې راته داسې وکړه پاتې کيسه :
« اوس هلته لرې ديو غره لمن کې
چې زموږ دسوي کلي باد پرې هره ورځ لګيږي
د يو پراخ او شنه ځنګله په منځ کې
هلته له سترګو لرې
دقلندر بابا يو کلی جوړدی
اوله هغه سره ملګري ټول زلمي او پيغلې هلته اوسي

زخمي هوسۍ هم ور.سره ده هلته
لايې زخمونو غخه وينې راڅي
ټپي هوسۍ ته يې له لوخونه بستر جوړکړی
دا څمې کلونه وشول
چې دهغې د زخمو وينې په بستر بهيږي
ملنګ بابا او دهغه ملګري
ميتڅي زخمو نه دهوسۍ، په او ښکو
د ملنګ سترګې په ژړا سپينې شوې
هغه په دواړو سترګو ړوند دی او څوك نه شي ليدی
او زما مين هم په ژړا ژړا ړوند شوی دی اوس
ښايي ملګري دملنګ بابا به ټول ړانده، وي
هوسۍ ځګير وی کوي او هيڅ نه وايي
بوازې کله کله ستانوم دځګيرويو منځ کې
په نيمه ژبه اخلي
هغه شپونکی يادوي
کله شپيلۍ ياده کړي
کله غنم يادوي
اوکله ستا دهغې ښکلې مينې نوم اخلي
هغه چې تورې تورې سترګې لري
هغه چې اوس خدای (ج) خبر چيرې تللې ؟!»

* * *

زه او مغروره پيغله
ورو ورو روان وو دځنګلونو منځ کې
هغې کيسه کوله
اوزه حيران وم د خپل ګران کلي عجيب داستان ته

ترڅو له لرې دځنګلونو منځ کې
ديوه غره په لمن
دشنو زيتونو او ځيړيو ترخوا
ښکاره شوې څوجونګړې
له وچو څانګو او وښونه جوړې
په عجيبه شانتې چوپتياکې ډوبې
سم چې ور ورسيدو
هلته مو وليدل خپل څو کليوال
رنګونه ژيړ
ښې سپيرې
سترګې له اوښکوډکې
ځينې ځوانان او ځينې پيغلې وو ړانده، په ژړا
او دمغرورې پيغلې
ښکلې جانان هم اوس په سترګو ړوندو
مګر بيا هم دخپلې مينې په راتلو وپوهيد
مغرورې پيغلې هغه غيږ کې ټينګ کړ
او په ژړا ژړايې ښکل کړل سره
زما په سترګو کې هم اوښکې راغلې

# او ماملنګ وليده

نوشيبه وروسته موږه تول ولاړوملنګ باباته
هغه چې زموږه له راتلو خبرشو
خپلې جونګړې نه بهر راووت

يو څه خوشاله او حيران ښکاريده ٠
هغه زموږ درناوي ته راغی
ماته يې غېږ پرانيسته
او چې يې سر زما پر ولي کيښود
خدايزده چې ويې ژړل که ويې خندل
دهغه ول ول ځنې سپينې وې اوس
دشين کميس پرځای يې تور کميس په غاړه کې پروت
کچکول يې مات وتېرګي يې لاستی نه درلوده
خولايې سترګو کې هماغسې بريښنا ځليده
په ړندو سترګوکې يې اوس هم لاجهان ښکاريده ٠
هغه له هرڅه خبر
او په هر څه پوهيده
خو اوس هغه هم زموږ دکلي برخليك ته ژړل
ملنګ چوپتيا نه وروسته داسې وويل :
ښه شو چې راغلې اې دهسکو هسکو غرو شپونکيه
زموږ دکلي دسندرو پاچا
اې دشپيلۍ دنغمو
دکوډو لويه ځوانه !
زموږ غم آباد ته دې قدم مبارك
کيدای شي ستا دغه کوډ ګره شپيلۍ
زمور هوسۍ وژغوري
زموږ دکلي نيکمرغي دخپلواکۍ ملکه
هغه چې اوس باسي ساه
د ژوند او مرګ پر پوله
او له زخمونو نه يې وينې راځي.

ته پرې خبر يې چې دچاله لاسه ؟
زموږه خپلو لاسو
زموږ دکلي د زلميو مټو
هغه دمرگ ترستوني راوستله
خو خدايزده چاته يې خپل ژوندساتلی
خدايزده وروستۍ سلگۍ يې چاته پرېښي
څو کاله وشول څنکدن يې دی خوسترگې يې لا ، لارې څاري
کله په نيمه ژبه تا يادوي
کله شپېلۍ يادوي
کله ستاور که مينه
کله غنم يادوي
او کله سپينې او به
ښايي چې ستا نغمې يې بياژوندۍ کړي
ځکه خو هيله کوم
اې دسندرو پاچا
راشه ترڅنگ يې کينه
شپېلۍ دې وغږوه
ترهغې ورځې پورې
چې هوسۍ بيا ژوندۍ شي
چې زموږله کلي څخه تللې دخوښيو ورځې
بيرته راو گرځي او بيا راشي
او دادوينواو غمونو شيبې
نورې دتل له پاره کډه وکړي.

## آه زموږ دمینې هوسۍ

او ماهمداسې وکړل
زه او ملنګ بابا هوسۍ ته راغلو
پیغله اوږوند جانان یې هم راسره
ټول دجونګړو اوسیـــدونکي ترشا
هلته له لوخو جوړه شوې وه یوه کوډله
منځ کې یې پروت و یودلوخوبستر
او دبستر له پاسه
یوه زخمي ښاپیرۍ
د درد په خوب ویده وه
هغه مغروره ، هغه مسته هوسۍ
هغه دهیلو ، نیکمرغیو ، خپلواکیو نښه
چې ټول جهان یې په دیدن پسې هلاك وهلاك
خو اوس دمړي په شان
د ژوند په ولیو باروه
آه زموږ دمینې هوسۍ !
خدای (ج) خودې وساته د مرګ له لاسه
زه به دې سر ته کینم
او څو چې ساه لرمه
ستاښکلي روح ته به شپیلۍ ووهم
درته به جوړه کړم د ژوند سندره
تا به دمینې په نغمو مسته کړم
نو دادی واوره !

اې زموږ دخپلواکۍ او نیکمرغۍ ملکې ! * * *

زما شپیلۍ زما دژوند داسرګردانه بیړۍ
بیا دیو ورك سفر په لارو سرده
خدای (ج) خبر بیا چیرې ځي
دادی زموږ دخپلواکۍ هوسۍ ته
دژوند سندرې وایي
لکه چې بیا په کوږو راغله سحرګره شپیلۍ
خدایزده چې بیا کوم طلسمو نه وژني
شپیلۍ لګیا ده لانغمې وروي
او د زخمي هوسۍ په مړاوو اننګیوکې بیا وینه ځغلي
او سپیرې شونډې یې ورو ورو رپیږي
ښایي تکل دځه ویلولري
بابا ملنګ مې پرا وړه لاس اینبی
او راته وایي داسې
ښایي چې زموږه خپلواکي بیا راځي
ښایي چې زموږه نیکمرغي بیا راځي
زه په ړندو خوبو کې وینم رڼا
زه دلمرپل پیژنم
تانه قربان شم دنغمو پا چاشپیلۍ ووهه
سندرې ویبوله سحر نږدې دی
هوسۍ به ویښه شي اومات به شي دوینو طلسم
ځار شم شپیلۍ ووهه
او ما همداسې لاشپیلۍ وهله .

## سترګې دې پرانیزه اې ښکلې هوسۍ

موږ ټولو خپلې سترګې تاته درکړې
سترګې دې وغړوه
موږ خپل ژوند ټول یوه نغمه کړستاتر سر مو ځارکړ
سترګې دې پرانیزه اې ښکلې هوسۍ
زموږ دهیلو او دمینو نازولې هوسۍ
اودې سندرې سره
ښایسته هوسۍ خپلې بیمارې سترګې پرانیستلې
بیا یې زموږ خواته را وکتل
یو یویې له نظره تیر کړو
لږ څه موسکۍ شوه
لږ څه وځګرویده
او شیبه وروسته یې بیا سترګې زما په لور کږې کړې
هغې په ښکلو سترګو ماته کتل
او بیا یې ورو وویل :
« ماته شپیلۍ ووهه
ماته نغمې جوړې کړه
یواځې ستاشپیلۍ ژوندون راکوي
یواځې ستا نغمې مې مرګ نه ژغوري
شپیلۍ دې وغږوه
او زما دژوند کیسه تر پایه وکړه ؛
ستا دشپیلۍ په ژبه زه پوهیږم
یواځې ماته دنغمو کیسه په زړه پاتې ده
ما ته زما د ژوند کیسه ووایه !

تر وروستي فصله ، تر وروستۍ شيبې تر پايه پورې ! »
هوسۍ تردې خبرو وروسته سترګې بيا پټې کړې
يو څه آرامه شوه ښايسته ښاپيرۍ
مالا وهله شپيلۍ
ماښام نه آن تر سپين سهاره پورې
آن تر هغو چې لمر را وختلو
څومره تياره ء وه ، څه اوږده وه داشپه
ملنګ بابا هم ويښ و
مغروره پيغله ړوند مين يې ويښ وو
ښايي ددې جونګړو ټول زلمي او پيغلې ويښ وو
سم چې سهار شو او لمر څرک وواهه
هوسۍ بيا خپلې سترګې پرانيستلې
داخل يې بيا ماته راو کتل په ښکلو سترګو
خو په ليمو کې يې را ورغړيدې سپينې اوښکې
او له ژړا سره يې داسې وويل :
« شپونکيه ! ستا شپيلۍ رښتيا وويل
هو په رښتيا زه ګنهکاره يمه
دا ټولې ويني زما له لاسه بهيدلې دلته
دا هر څه ځکه وشول
تر څو چې زه دخپلواکۍ ملکه
دهسکو هسکو غر ونو کلي ته را و ګرځمه
دغو زلميو همدا زه ګټلم
ځکه يې وريبل شول شنه سرونه
دې کلي پرته له ماژوند نه غوښته
ځکه خو وسوځيد لميه لميه شو

ځکه په وینو کې یې ولمبل
تا لا شو
لوټ شو.
دې غرونو زه غوښتلم
ځکه یې ډکې شوې لمنې دبچوله قبرو
دې پیغلو زه غوښتلم
ځکه یې لوټ شول دحیا پړوني
دې کو چنیانو زما سیوری غوښته
ځکه له لوږې مړهء شول
اې کلیوالو !
اې دهسکو هسکو غرونو خلکو !
اې پیغلو!
اې زلمیو !
اې زړو ، ځوانو ، نارینه و ، ښځو !
مګر دا « زه» په دومره وینوارزم ؟!
« زه »
هو!
همدا «زه» همدغه ښکلې هوسۍ
همدغه ستاسو ښایسته ښاپیرۍ
دخپلواکۍ ملکه
د آزادۍ پرښته
داستقلال ښتنه
مګر په دومره ریبل شوو سرو
دومره قبرونو دومره سویوار واګانوارزم ؟!
آیا زه ټوله د «انسان» په یو ویښته ارزمه ؟

آیا زه ټوله د «انسان» په یوه درد ارزمه ؟!
په یوه آخ
یوې سلګۍ
او یوې اوښکې ارزم ؟!
نه خلکو نه ارزمه
زه هیڅ ارزښت نه لرم
تاسویې ومنئ چې ما خوداسې حال نه غوښته
دومره دوینو تږې هم نه ومه
دومره سرونه خو مې نه غوښتل
د دومره غوښو وږې نه وم
هر څه زما په نوم شول
دا هر څه داغ شول زما پر سپینه لمن
آه خدایه ! دا څه وشول
آه خدایه ! ما وبښه
اې ربه ! ماوبښه ...»
ښکلې هوسۍ وژړل
دهغې سترګې شوې داوښکو چینې
ښایې چاغوږکې ورته داسې ویل :
هوسۍ ! سلګۍ ووهه ، وژاړه او زړه دې تش کړه !
خپل بر خلیك ته ژاړه
چې ستا له پاره یې د څومره « انسانانو» ژوند ته اور ورته کړ
وژاړه ښکلې ښاپیرۍ وژاړه
اې د آزاد ژوندون ښایسته ملکې !
هغومره وژاړه چې ټولې وینې
ستا درنو اوښکو په سیند لاهو شي

په خپلوا و ښکو وينې ومينځه او مينې شنې کړه
هغومره مينې شنې کړه
چې نور دوينو رنګ له خلکو هېرشي

## خوله ژړا نه وروسته

هوسۍ ورو وخوځېده
او په زخمي ګوتوېې
په خپل ګرېوان کې کوم څه ولټول
بيا يې راوويست دسرو زرو تاويز
او شيبه وروسته يې دپوښ له منځه
دلاس په رغوي کې غنم تويې کړل
او دغنمو درې دانې يې موزه ټولو ته راوښوولې
يوه شيبه يې ماته ښه وکتل
او بيايې وروسته را ته داسې وويل :
اې زموږ دکلي دنغمو شهنشاه
دسرو او تورو طلسمو نو ماتوونکيه جادو ګره واوره !
- زه مې دخپل ژوند هستي تاته سپارم
کېدای شي دغه دغنمو درې دانې در سره مرسته وکړي
چې ددې کلي دمرګونو کوډې ماتې کړې پرې
زموږ دکلي دجګړو طلسم
يوازې دغه درې غنم او ستاشپېلۍ ماتوي
دغه غنم دې ها سپېڅلي غنم
چې ډير کلونه پخوا
زموږ دکلي کروندو کې شنه وو

چې لا زموږ کلیوال
دخپلو مینو په خوږ وکې ډوب وو
چې نه لات دیو ونه اوردیو نه یې زاړه چوپړګر
نه دالښکرې وې او نه هم دجګړې هیاهو
کله چې زموږ کلې کې فصل دغنمو شین و
دغه غنم مې کړل تاویز د خپل ګریوان له پاره
ما ویل چې ما سره به زما دکلي نښه وي دتل له پاره
خو اوس چې زموږ کلي کې فصل دغنمو نشته
او کلیوالو مود ټول عمر روژه نیولې
دا غنم تا ته سپارم
ولاړشه او خپله مینه بیا پیدا کړه
هغه دتورو تورو سترګو میرمن
څکه کلو نه وشول
چې تاته لارې څارې
هلته دبروغرو په شنه دره کې
ستا پخواني شپول سره
یوې جونګړې کې یواځې اوسي
ولاړ شه هغې ته دا غنم یوسه
او چې یوځای شوئ سره
بیا دواړه لرې ولاړشئ
لرې ډیر لرې
زموږ د کلي یوه داسې ځای ته
چې د «انسان» له قد مونو پاک وي
یو داسي ځای چې هلته وینه تویې شوې نه وي
داسې سپیڅلي ځای ته

چې «انسان» نه وي وژل شوی هلته
يو داسې ځای چې پرې دوبنو وزمه نه لگيږي
کله چې داسې ځای ته ورسيدئ
نو هلته دغه غنم وکرئ په مينه مينه
بيا نو او به راوړئ له داسې چينې
چې په کې وينه دانسان هيڅ گډه شوې نه وي
پاکې سپيڅلې اوبه
چې دانسان د ظلم رنگ يې هيڅ ليدلې نه وي
وروسته په خپلو لپو
دغه اوبه ورکړئ همدې دانو ته
او بيا نو تاسو دواړه
چې نه مو څوك وژلي
نه چاوژلي ياستئ
نه مو دوينو تويول ليدلي
نه مووژل او نه وحشت ليدلي
او اروا گانې مو سپيڅلي دي لا
په خپلو ښکلو نغمو
په راز او نياز دمينې
په مستو مستو خندا گانو هيلو
او دشپيلۍ په سند ريز وکوږو
دادرې غنم ورروزئ
کله چې دې غنمو وزي وکړل
بيا يې نو را وړئ ماته
اوزه به داغنم دخپلو کليوالو په لوروشيندمه
چې کړي پرې ماته دکلونوروژه

له دې روژې سره به ماته شي دوینو تنده
ورسره مات به شي دجنگ طلسم
هم دمرگونو کوډې
وینې به ودریږي
د دښمنیو سیند به هم وچ شي
او اوربه واخلي دقهرونو دتوپان وزرونه
تورې به ماتې شي اغزي به گل شي
او دجگړو دیوان به ټول هلاك شي
زموږ کلیوال به بیا دمینې اتڼونه پیل کړي
او بیا به شین شي دغنمو فصل
ولاړ شه شپونکیه ولاړ شه
ولاړ شه او خپله مینه بیا پیدا کړه
هغه دتورو تورو سترگو میرمن
او له هغې سره یو ځای دغه غنم وکره

* * *

نو ماهمداسې وکړل
دهوسۍ لاس نه مې غنم واخیستل
دهغې سترگې وې له اوښکو ډکې
په ډیره هیله یې لاماته کتل
ماله ملنگ بابا نه
له نورو پیغلو او زلمیو ښخه
هم له مغرورې هم یې ړوند جانان نه
د دعا هیله وکړه
او هغوئ ټولو راته وکړه دعا
بابا ملنگ پښې ته درب ورکړ اتڼ یې پیل کړ

زلمو او پیغلو ټولو پیل کړه نڅا
او زه د دغو اتڼونو او نغمو بهیر کې
په لمد و سترګو راروان شوم له جونګړوڅخه
پرزړه مې مخامخ دیار خوږه وږمه لګیده
کیدای شي نن یا سبا
ډیر ډیر کلونه وروسته
دخپلو تورو تورو سترګو میرمن
دخپل ژوندون یوازینۍ مینه بیا ووینم په خپلو سترګو
اسمانه زیری راکړه
ای غرونو وناڅئ په ملامات شئ !
دشنو زیتونو او څیړیوونو !
ګلونه وشیندئ سپرلی راولئ !
چې زه به خپله مینه بیا ووینم
هغه دښکلو تورو سترګو میرمن
اې ژونده مه تیریږه !
ودریږه !
کیدای شي مرګ نږدې شي
او زه مې خپله مینه
داخل ونه شم لیدای
هغه سات مه کړې خدایه !
خدایه هغه سات مه کړې !

## زموږ د مينې ديدن

باد لاهماغسې دشنو څېړيو سنکلې څانګې
سنکلوي ناز ورکوي
غر لا هماغسې چوپتياکې ډوب دی
سيند لا هماغسې سندرې وايي
لمر لا هما غسې ځليږي داسمان پرلمن
ځنګل دخپل ستړي بدن زخمو ته خوب وړی دی
خو وخت تيريږي ماته نه دريږي
اوزه دعشق د لارو ورك مساپر
ديار ديدن پسې ځم
مخامخ لورى ځارم
بر غره ته لار لنډوم
هلته دشنې درې په منځ کې دخپل ورك شپول - تر منزل پورې ځم
او دهوسېږه په وينا
کيداى شي هلته خپله ورکه مينه بيا پيداکړم
هغه دتورو تورو سترګو ميرمن
هو ! زه هغې ته ورځم
او په سپيروشونډو وسندرې وايم :

« نن د جانان ديدن ته ځمه - توری نرۍ وروځې
خدايه ته لنډ کړې داځمکې تنابونه - مستې نازنينې
چې دو صال دميوويش و - مستې نازنينې
زه د تقدير په زولنوتړلی ومه - وسوم اور دمينې
نه دې ديدن شته نه مې صبر - مستې نازنينې
په غم لړلې يارانې ستړی دې کړمه - وسوم اور دمينې

نن د جانان دیدن ته ځمه - توري نرۍ ورو ځي
خدایه ته لنډ کړې داد ځمکې تنابونه - مستي نـازنیني »

... اوزه سندري وایم
با دلا هماغسې تاویږي دڅېړیو منځ کې
غر لا هماغسې چوپتیاکې ډوب دی
ځنگل دخپل ستړي بدن زخموته خوب وړی دی
خو وخت تیریږي ماته نه دریږي
او زه دبرغره شنه دره کې خپل ورك شپول لټوم
دغرو لمنو کې اوس لارې نشته
ټولې له زوځواو اغزو ډکې دي
خوزه د غرو په ژبه ښه پوهیږم
زه دهغوئ د زړونو غږ اورم
غر زما همزولی زه دغره همزولی
زموږ اشنایي ده دکلو اشنایي
زه خپله خاوره او خپل غر په مینه هم پیژنم
زه د همدغو تورو غرو بچی یم.
ما خو دغرو دابۍ پۍ رودلي *
اوزه دغره زړه ته دتگ په لاروښه بلدیم
زه د خپل شپول دهوا بوی پیژنم
کیدای شي شپول مې رنگ وي
کیدای شي لارې مړې وي
خو زما دغرو هډوکي هیڅوك ماتولای نه شي
زه دهغه په هډوکې خپله زانگو ښه پیژنم
زه خو همدلته زیږیدلی یم لوی شوی یمه .

* د اسحق ننگیال یو شعري تعبیر

مامې د پلار شپول کې خاپوړې کړې
شپول خو زما کورو

زما دميني کورو

اوس که وران شوی هم وي
خو زه دخپلې زانګو هډ پيژنم
دادی ددغو پرښو
ددې کمرو نو تر شا
دهغې لوړې څوکې کيږې خواته
له هغه ځای څخه چې غر راځي ...
آه خدايه دا څه اورم ؟!!
څومره اشنا آواز دی
آه څومره خوږ دی څومره شورنه ډک دی
آه خدايه اور لګوي ، ژوند راکوي
څومره په سوز وايي چې :

**« يوځلې بيا په دې لار راشه**
**په پخوانو پلونو دې پريوتل ګردونه »**

* * *

دادی اشنا در غلم
او دادی واوره غږ مې :

**« درځمه غيږ کې مې ويده کړه**
**دبيلتانه شوګيرو ډير وهلی يمه »**

او زما له دې غږ سره
آشنا آواز سندره پريښوده او غږ غلی شو.
هلته زما د شپول تر څنګه ده يوه جونګړه
له وچو کړکو او وښونه جوړه

وه په کې ناسته بېرسرې او ملنګه نجلۍ
سم چې زما غږېي واورېد
دلېونيو په شان پاڅېده

جونګړې نه بهر ووته
ها خوا او دې خواېې په ځير وکتل
زلفې يې بادوهلې
يو څو زړې جنډې يې غاړه کې وې
ټيکرۍ يې نه وه پرسر
پښې يې لوڅې وې ګرېوان يې څيرې
يوه بنګسارې لېونۍ نجلۍ وه
په وېره وېره يې هر خواته کتل
په تورو سترګو کې يې کرکې او ډار
يو ځاى ځپې وهلې
ښايي هغه وېرېده
خدايزده له څه شي څخه ؟!
زه د څېرۍ شا ته ولاړوم او کتل مې ورته
هغې دشپول په کنډوالوو خپل نظر ګنډلی
وروسته يې ځان سره په کرکه ووېل :
د «بنيادم» غږ راځي ؟!!
لکه چې کلي کې څوک پاتې نه دي
لکه چې ټولې وينې خــلاصې شوې
سرونه خلاص شول ؟
نو دادی اوس بنيادم دلته راغی ؟
دلته زما معبد ته ؟!
دغه سپېڅلي او له وينو څخه پاك حريم ته

اې بنیادمه څوك یې ؟
پام چې رانه شې وړاندې
زمارگونه وچ دي
او غوښه هم نه لرم
یواځې اوښکې لرم
پام چې رانه شې دلته
دا خو زما دشپونکي شپول دی

دا خو زما معبد دی.
دا ځای سپیڅلی دی له وینو ، له مرگونو او له کرکو څخه
پام چې په دې ځای باندې سیوری نه شې
که مې ژوندون غواړې او وژنې مې نــــو ووایه خو شاله به شم
هلته به لرې درشم
هلته ما و وژنه پروانه لري
خو پام چې دلته وینې تویې نه کړې
دا خو زما دشپونکي شپول دی

دا خو زما معبد دی

ای بنیا دمه څوك یې ؟
غږ خو دې راغی خولیدی دې نه شم
زما خوسترگې دي له اوښکو ډکې
زه خو له اوښکو
له سلگیو
له ژړا جوړه یم
زما خورگونه وچ دي
او غوښه هم نه لرم
زه لیونۍ یم یوه سوچه سارانۍ لیونۍ

ستا د هوس تنده هم نه شم ماتولای په ځان
هو بنیاد مه واوره !
زه همدا اوس همدا دوینو وخت کې
لاهم مینه یم اومینه کوم
زه لیونۍ یم ځکه مینه کوم
مګر پوهیږې بنیادمه چې جانان نه لرم
زما جانان کلو نه وشول ورك دی
هغه شپونکی و زموږ دکلي شپونکی
هغه شپیلۍ وهله
چې ښاپیرۍ یې شوې مینې دشپیلۍ پرآواز
نو پر هغه باندې یې کوډې وکړې
او پر سپین آس یې آن دقاف دغرونو شاته بوتهء
خو زه لا اوس هم پرې مینه یم
له یاد سره یې مینه کوم
اې بنیاد مه غږ مې اورې که نه ؟
زه لیونۍ یم چې لا مینه کوم . »

* * *

له دې خبرې وروسته
دلیونۍ پیغلې له تورو تورو سترګو ښخه اوښکې راغلې
زه دڅیرۍ شاته ولاړیم ، لیونۍ ژاړي
لمرلاهماغسې ځلیږي داسمان پرلمن
غرونه هماغسې چوپتیا کې ډوب دي
مګر اې غرونو واووئ !!!
نوره چوپتیا موبس ده
زه نوره ستا سو چو پتیانه شم زغمی

زه مو نور چوپ نه پرېږدم
تاسو به وغږ وم ، و نځوم
تاسو به بیا دیوې ورکې مینې
دخوب پالنګ کړمه اومست به موکړم
اې غرونو وناځئ ، اتڼ وکړئ چې زه درته شپیلۍ ووهم
او ستاسودغه لیونۍ لور به هم مسته کړمه
دیوې ورکې مینې اور به یې په زړه کې بل کړم
مامې شپیلۍ په شونډو بیا کیښوده
او دهغې په کوډګرستوني کې مې پوکړه نغمه :
شپیلۍ مې واوره لیونۍ ملنګې :
او خپلې تورې تورې سترګې دې راواړوه بیا
زه درته مخامخ په تیږه ناست یم
شپیلۍ مې واوره او باور وکړه چې خوب نه وینې
شپیلۍ مې واوره او دمینې دیدن بیا تازه کړه

## مبارکې راکړئ عالمه

## دکلو ورک جانان مې بیا غیږ ته راځینه

لیونۍ وپیژندم
مالا شپیلۍ وهله
چې ړنګه بنګه مې په غیږه کې را پریو تله
څومره توده وه څه خوږه وه زما دمینې غیږه
لکه چې یو شو سره
دیو وجودپه شانې
زړو نوموخپلو کې خبرې پیل کړې

ځومره ګیلې ځومره پوښتنې یې وې
زړونو ! ګیلې مه کوئ
چې په ټول ژوند کې داسې ښکلې شیبه بیا نه راځي
زړونو ګیلې مه کوئ !
یواځې یوبل سره ښکل کړئ سره یوشئ دواړه
زړونو درزا مه کوئ شورمه کوئ
زړونو اورونه مړه ء کړئ غوږ ونیسئ
چې موږه دوه مینان
کله چې شونډو باندې شونډې زدو -
نو څه به وایو ؟
کله چې یو د بل په غیږه کې کیسه کوو دتیروکلو
کله چې لاس یو دبل غاړه کې سپیدو څخه پوښتنه کو
سبا به څه کیږي
یو کال وروسته به څه پیښیږي ؟!
زړونو . درزامه کوئ غوږ ونیسئ !
موږه سبا ته څو دغرو څوکوته
چې دسپیڅلې چینې خواکې دغنمو درې دانې وکرو
زړونو !
اورونه مړه ء کړئ شورمه کوئ
زړونو درزامه کوئ غوږونیسئ

## چې لوړ وغرونوکې نارې ومې څوك :

دلوړ و څوکو هسکو دنګوغرونو
دسردرو دشنولمنو خواکې

هلته يو كلي دی دوينو كلی
دسرو اوړونو او دتورو كلی
چې سوځيدل يې آن له لرې ښكاري
چې كليوال يې خپل كورونه سوځي

* * *

او موږ ددې كلي يو دوه ليونيان
دوه كليوال او دوه مين ملنګان
يو يې شپونكی چې په شپيليو باندې كوډې كوي
بله ملنګه نجلۍ
هغه چې تورې تورې سترګې لري
غاړه په غاړه څو دغرو څوكو ته
پاكو اوبو سپيڅلې خاورې پسې
غواړو غنم وكړو
او كليوالو ته مو ژوند وښيو
هغوی چې ټول عمر روژه نيولې
كلونه وشول داورونو منځ كې
زموږ غنمو ته په تمه ناست دي
موږه له غره څخه خپل كلي وينو
چې ترې لمبې او تور دودونه خيژي
خو موږه دوه ليونيان
غاړه په غاړه څو دغرو څوكوته
پاكو اوبو سپيڅلې خاورې پسې
غواړو
غنم
وكړو.

پای

# کور ودانی

د نوید د کمپیوټري چارو د مرکز له مشر ښاغلي کمین زاده صاحب څخه مننه چې د کمپیوټر په پرده کې یې د "هوسۍ" انځورول په ورین تندي پر ځان ومنل او د ګران قیس احمدي په ځوانۍ دې برکت شي چې د "هوسۍ" د متن په کمپوز/ډیزاین یې هغه په خپلو ښکلو ګوتو ونازوله. د هېواد له تکړه ویاند ښاغلي غورځنګ څخه مننه چې دغه منظومه یې په خپل خواږه غږ کې دیکلمه کړه همداراز زه خپل دغه درانه دوستان هم په مننه لمانځم چې د لیکلو په مهال کې یې له "هوسۍ" سره مینه کړې:

ښاغلی حفیظ الله ګردش، ښاغلی محمد داؤد وفا ښاغلی قاضي سید اختیار سباوون، ښاغلی رحیم الله سمندر، پیاوړی انځورګر ښاغلی استاد سید فاروق فریاد، ښاغلی ډاکتر باز محمد ښادمن، ، ښاغلی صدیق الله بدر، ښاغلی نور محمد لاهو، ښاغلی ملیار کاکړ، زلمی هنرمند او تنکی شاعر جانان کاکړ او اول الرحمن رودوال.

لېوال

د لیوال خپاره شوي کتابونه:

۱- مخه ښه او دوه منظومې
۲- ژړا، اور، مینه (د شعرونو مجموعه)
۳- او همدا اثر

د پښتني فرهنګ د ودې او پراختیا ټولنه (جرمني)
پرله پسې نومره (۵)